# دویم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| وخت | د مطالبو شرح | د مطالبو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | د اسلام د ستر پیغمبر ستاینه | ۱ـ د لوست موضوع |
| | ـ د اسلام د ستر پیغمبر پېژندنه،<br>ـ د اسلام له پیغمبر سره مینه او علاقه،<br>ـ د متن لوستل او لیکل وکړای شي،<br>ـ د پیغمبرانو د بعثت له موخې څخه پوهه او معلومات ترلاسه کول،<br>ـ د نعت په بېلابېلو خواوو پوهېدل. | ۲ـ د زده کـــــړې پـــوهنیزې، مهـــارتي، ذهنیتي او موخې |
| | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | ۳ـ د تدریس لارې |
| | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | ۴ـ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | ۵ـ د ارزونې لارې اود ارزونې وسیلې |
| ٦ دقیقې | لومړی فعالت:<br>ـ سلام، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کـــار کتنـــه اودتیرلوست ارزونه | ٦ـ د زده کـــړې او تدریس فعالیتونه |
| ۴ دقیقې | تاسې د مخه کله نعت لوستلی یا اورېدلی دی؟<br>ـ د نعت ویلو اصلي موخه څه ده؟<br>ـ الله ﷻ پیغمبران د څه لپاره رالیږلي دي؟ | ۷ – د انګیـــــــزې رامنځته کول |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ښوونکی دې په زده کوونکوبا ندې متن په چوپــه خوله ولولي. | – زده کوونکي متن په چوپه خوله لولي. | ۳۵ دقیقې |
| په څوتنو زده کوونکود ټولګي په مخ کې یویــو پراګراف لولي. | _څو زده کوونکي د ښوونکي په اشاره متن لولي او نور ورته غوږ نیسي. | |
| _ د متن په لوستلو کې زده کوونکو ته لارښوونه اوددوی دغلطیو اصلاح کول. | _ خپلې غلطۍ اصلاح کوي. | |
| _ زده کوونکي په ډلو وېشي. دویم فعالیت پــرې اجرا کوي.څارنه کوي چې ټول زده کوونکي پکې برخه واخلي. | – ټول زده کوونکي په فعالیت کې برخه لري. | |
| _ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې کوي. | – زده کوونکي ګرامري پوښتنې ځوابوي. | |
| _ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټــولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي. | – زده کوونکي د ټولګي په مخ کــې دلوســت مفهوم په خپلو خبروکې وایي. | |
| _ ښوونکی دې په زده کوونکو بانــدې د شــپږم فعالیت پوښتنې ځواب کړي. | – زده کوونکي دشپږم فعالیت په حلولوکې برخه اخلي. | |
| _ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې د زده کوونکو لارښوونه. | – زده کوونکي جملې بشپړوي اود تمرینونوپــه حلولوکې برخه اخلي. | |
| – په زده کوونکو دې ۷ فعالیت سرته ورسوي او هڅه دې وکړي چې ټول زده کوونکي په صــنفي فعالیت کې برخه واخلي. | – په ډله ییزو فعالیتونوکې برخه اخلي. | |
| – که چېرې وخت و، ښوونکی دې ورتــه نــور فعالیتونه په ټولګي کې په زده کوونکو اجرا کړي . | | |
| – د فعالیتونو له اجرا وروسته ښوونکی یو ځــل د لوست په لنډیز خبرې کوي او بیا د لوست ارزونه د څو پوښتنو په کولو سره کوي. | – دلوست لنډیز ته غوږ نیــسي او د ارزونــې پوښتنوته ځواب وایي. | |
| – کورنی دنده ور کوي | _ د کورني کار موضوع له ځان سره لیکي. | |

۸_ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

د دریم فعالیت ځواب:

– حضرت محمدﷺ په داسې حالاتو کې پیغمبر شو چې په ټوله نړۍ کې د جهالت او ناپوهۍ تیاره خوره وه او دغه جهالت په هغه وخت کې په عربي نړۍ کې زیات و، ان چې ځینو به لورګانې ژوندۍ ښخولې او بتانو ته بــه یــې

عبادت کاوه او خرافات زیات و و.

ځلورم فعالیت:

په متن کې متضادې کلمې دادي:

| | |
|---|---|
| جهالت | پوهه |
| تیاره | رڼا |
| حلال | حرام |
| سیند | وچه |
| رڼا | تیاره |
| ورځ | شپه |

۶ فعالیت:

ب سوال سم دی.

۷ فعالیت:

| | |
|---|---|
| کور | کورونه |
| لار | لارې |
| قام | قامونه |
| انسان | انسانان |
| ستوری | ستوري |

## ۹- اضافي معلومات:

دنړۍ پرمخ دجهالت او وحشت تورې وریځې او لړې خپرې وې، بشریت په خرافاتو او واهمو کې ښکیل او په داسې بې لاریو سر و چې انسانیت او انساني فضلیتونه یې له یوې مخې هېر کړي وو.

کعبه شریفه، یا دالهي نمانځنې او توحید په ستر مرکز کې د پروردګارد نمانځنې پر ځای دبې شمیره بوتانو نمانځنه پیـــل او دود شوې وه.

یوازې دمکې معظمې او مدینې منورې وګړي یاپه بله وینا د حضرت ابراهیم خلیل الله اولاده او توکم دناپوهۍ خرافاتو، کینې او نفساني خواهشاتو په اور کې نه سوځیده، بلکې د تورات، انجیل او نورو دینونو پیروانو هم خپل دیني نصوص هیر کړي وو او یا یې دخپلې خوښې په تحریفي بڼه عمل کاوه.

لنډه دا چې ټول بشریت اصلاح او دنړۍ فکري او اجتماعي اوضاع بنسټیز سمون اویو ژور بدلون تـــه اړتیـــا درلـــوده، نـــو الله ﷻ د نړۍ پر مخ په دغسې حالت او وضعیت کې یې د بني هاشمو په کورنۍ کې دعبدالمطلب د زوی عبدالله په کورکې د حضرت محمدﷺ د مبارک وجود نور وځلاوه.

کله چې دغه نوراني بشر نړۍ ته سترګې وغړولې، په خپلو معصومو سترګو یې شاوخوا تیاره او ظلماني فضاته په حیرانۍ کتل، نو د خدایﷻ نور یې په سترګوکې ځلیده او پر همدغه نور یې دخلکو دناوړو دودونو، عقاید و او افکارو تیاره ګوټونه لیدل.

هر څومره چې رالوئیده، دخلکو دمعنوي بدمرغیو په لاملونو پوهیده او دهغو له منځه وړلو ته په ژور فکر متوجه کید ه. پر خلکو یې زړه سوی او لورینه زیاتیدله اولا په هماغه وړوکوالي کې، لکه:د یو مهربان پلار په څېر چې تل دخپلو اولادونو په ناوړه کړنو او

اعمالو، ځوريږي، دخلکوپه خرافاتو، ناپوهی، غرور، ځان غوښتنې او بيلا بيلو بدمرغيو ډير زيات ځوريده.
هغه (ﷺ) که په سفرکې و، که په حضرکې، که يو وخت په شپانه توب بوخت او بيا د ژوند په يو بل پړاو په سوداګرۍ، په کور کې و او که دمکې معظمې په ګاونډ کې ددغه ناوړه حالت دله منځه وړلو او دبشريت د ژغورلو فکر ورسره مل و.
دهمدې ستر هدف لپاره به تل په ژور فکر او انديښنو کې ډوب و، خندا يې په شونډو نه ليدل کيده، خو اللهﷻ چې کومه نوراني او جذابه ځيره ورکړې وه، دخلکو نظرونه به يې بې ارادې د ده په لوري راښکل.
له کوچنيوالي نه تر ځوانۍ او بيا دعمر تر منځني پوړه په وينا او کړنو کې دده (ﷺ) رښتينولي، غوره اخلاقو خير غوښتنې، لوړهوډ، همت، زغم، کمينۍ او بې سارې عالي شخصيت دوست، دښمن، خپل او پردي ټول حيران کړي وو. هر چاته د زړه له کـــومي منلی و، لوی خدایﷻ پرې د هر اړخيزې پوهې او معلوماتو داسې پانګه لوروله او ورپه برخه کړې وه چې له هر چا نه يـــې د ژوند پيښنو او مسايلو په باب ښه ژور درک، حکم او قضاوت کولی شو.
کومه ستره او له مسووليته ډکه دنده چې په مخکې يې لرله او خدایﷻ د هغې د سرته رسولو لپاره پيداکړی او غوره کړی و، هغه يې تل دافکارو په پرده انځور او ځرګنديدله، خو په خپله يې چاته دهغې په باب څه نه ويل او دا راز يې پټ ساته،زياتره وخت به له خلکو ګوښه و، په شپو، شپو او ورځو، ورځو به چانه ليده. په دښتو او غرو رغو کې به يوازې ګرځيده او له خالق سره به په راز او نياز، په عبادت او رياضت بوخت و.
همدا چې عمر يې څلويښتو کلونو ته ورسيد، د لوی خدایﷻ له لوري په پيغمبرۍ مبعوث شو.
د حق دين ته يې بلنه پيل کړه. هغوی چې د حضرت محمدﷺ په حقانيت او شخصيت يې باور درلود، يې له ځنډه يې دده بلنـــه ومنله، ايمان يې پرې راوړ او هغوی چې د دنيا مال اوسترتيا، قومي او قبيلوي تعصبونو اوځان غوښتنو يې دباطن سترګې ړنـــدې کړې وې، په ماتې محکوم شول. په الهي مرسته دقرآن عظيم الشان له معجزې ډکو آياتونو په اغيزو سره د خدایﷻ استازي دکفر او شرک کمپله ټوله او پرځای يې دحق دين خپور کړ.
هو! اللهﷻ د خپل دغه غوره بنده او استازي په لاس دبشر دژغورنې او لارښوونی لپاره نړۍ ته د اسلام سپيڅلی دين را ډالۍ کړ چې په ډير لږوخت کې يې داسې پرمختګ وموند چې د اديانو په تاريخ کې يې سارې نه ليدل کيږي،نه يوازې دعربو په لويو او وړو قومونو، قبيلو او شاوخوا ملکونو ته، بلکې د نړۍ ګوټ ګوټ ته ددې حق دين روښانه وړانګې ورسيدې او د بشريت دنيوي او آخروي نيکمرغۍ يې له يوې مخې تضمين کړې.
د زياتو معلوماتو لپاره وګورئ:
ــ سيرت النبي لومړی، دويم، دريم، څلورم، پنځم او شپږم ټوکونه. د سيد سليمان ندوي او شبلي نعماني ليکنه، د عزيز الرحمان ژباړه.

# دریم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ــ د لوست موضوع | د ملي یووالي ارزښت او اړتیا | |
| ۲ــ د زده کــــــــړې پـــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې | ــ د ملي یووالي پېژندنه،<br>ــ د ملي یووالي په ارزښت او اهمیت پوهېدنه،<br>ــ د متن په لوستلو او لیکلو پوهېدل،<br>ــ په زده کوونکو کې د ملي یووالي روحیې پیاوړې کول،<br>ــ د مترادفو کلمو پېژندنه، د جملو جوړولو وړتیا ترلاسه کول. | |
| ۳ــ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړي فعالیت | |
| ۴ــ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ــ د ارزونـــې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: لوستل، لیکل، د یاداشت کتابچه اود ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦ــ د زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه | لومړی فعالت:<br>سلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه دتیرلوست ارزونه. | ٦ دقیقې |
| ۷ـ د انګیزې رامنځتـــه کول | که د یوې سیمې یا هېواد وګړي په خپلو کې ملي تړون او یووالی ونه لري، له کومو ستونزو سره به مخامخ شي؟ | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ښوونکی دې په زده کوونکوبا ندې متن په چوپه خوله لولي.<br>_ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیو اصلاح کول.<br>_ په څو زده کوونکو دې د ملي یووالي په ارزښت او اړتیا په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>_ په زده کوونکو دې مترادفې کلمې په کتابچو کې ولیکي او خپله ښوونکی دې څارنه وکړي چې ټول په کې برخه واخلي.<br>له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د کتاب دریم فعالیت پرې اجراء کړي، څارنه دې وکړي چې ټول زده کوونکي په کې برخه واخلي.<br>_ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي.<br>_ د زده کوونکو د نظر معلوملو لپاره د ې د هغوی تصمیم و پوښتي.<br>_ ښوونکی د لوست په لنډیز خبرې کوي او په پای کې د لوست ارزونه کوي.<br>ښوونکی کورنۍ دنده ور کوي. | _ د متن لوستلو اود ښوونکي لارښوونو ته متوجې کېدل..<br>– د جملو تلفظ او ترکیب ته پاملرنه.<br>_ د زده کوونکو خبرو ته غوږ نیول.<br>_ په کتابچه کې دنویو کلمو لیکل.<br>_ ټول زده کوونکي صنفي فعالیت اجراء کوي.<br>_څو زده کوونکي دټولګي په مخ کې دلوست مفهوم وایي اونور زده کوونکي ورته غوږ نیسي.<br>_ زده کوونکي ځواب ورکوي اوپه خپل تصمیم خبرې کوي.<br>– زده کوونکي دلوست لنډیزته غوږ نیسي اودارزونې پوښتنوته ځواب وایي<br>– زده کوونکي کورنۍ دنده یاداشت کوي اوپه کور کې یې بشپړوي. | ۳۵<br>دقیقې |

۸– د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

کلتور او فرهنګ:

د تاریخ په یوه ټاکلې دوره کې یا د بشر په ټول تاریخ کې د ټاکلې انساني ډلې یا د ټول بشر د پنځولو او خلق کړو یا مادي معنوي شتمنیو مجموعې ته ویل کېږي. د فرهنګ لغوي معنا علم او پوهه ده. د یو قوم یا ملت علمي او ادبي اثار او معارف د هغه قوم یا ملت فرهنګ ګڼل کېږي . یا په بله وینا کلتور یو پېچلې مجموعه ده چې د خلکو معلومات، معتقدات، هنرونه، اخلاق، قوانین دودونه او ټول هغه تمایلات، عادتونه او وړتیاوې دي چې انسان یې د ټولنیز ژوند په بهیر کې ترلاسه کوي.

عنعنات: دودونه او رواجونه

ملت:

هغه وګړي چې په یوه جغرافیایي سیمه کې اوسیږي،ګډ تاریخ او عنعنات ولري. یو ملت بلل کېږي. یا په بله وینا د یو هېواد ټېلا ټېل قومونه چې ګډ تاریخ او فرهنګ ولري، یو ملت جوړوي. دغو خلکو د تاریخ په اوږدو کې ګډه ژوند کړی وي او له خپل ټاټوبي یې په ګډه دفاع کړي وي او د هېواد قوانینو ته یې غاړه ایښې وي.

ملي ګټې:

ملي ګټې هغه ګټې دي چې په ټول ملت پورې اړه لري.په یو ځانګړي شخص یا ډله پورې اړه نه لري.

د دویم فعالیت ځواب:

ګډ: یو ځای

ستر: پراخ

یووالی: اتحاد، اتفاق

ودانۍ: ابادي

بې اتفاقي: جنګونه، دښمني رامنځته کوي امن له منځه وړي او ټولنه وروسته پاتې کېږي.

د ملي یووالي ټینګښت هغه عوامل له منځه وړي چې د یووالي بنسټونه نړوي نوبایدملي ګټې ترشخصي ګټو غوره وبولو.

په وروستیوپوښتنوکې الف جز سم دي.

دفرهنګ لغوي معنا علم اوپوهه ده، د قوم یاملت علمي اثاراومعارف دهغه قوم یا ملت فرهنګ بلل کیږي.

**۹- اضافي معلومات**:

ملي یووالی:

په دې برخه کې دګل پا چاالفت هغه لیکنه را اخلو چې دملي یووالي په هکله یې لیکلې ده.

هغه خلک چې په یوه وطن کې اوسېږي، ګټه او زیان یې یو وي، د یوه واکمن امر ته یې غاړه اېښې وي، له یوه بېرغ لاندې راټولېږي او مشترک تاریخ لري یو ملت بلل کېږي.

افغانستان یو وطن دی، د دې وطن ټول اوسېدونکي یو ملت دی. د دې ملت نوم افغان دی، لکه:چې په افغانستان کې ساړه او تاوده، وچ او لامده، هسک او ټیټ ځایونه شته چې په ځینو کې یو راز غلې او مېوې کېږي، په ځینو کې بل راز.

په ملت کې هم راز راز خلک شته چې کره وړه یې یو له بله ځیني فرقونه لري. موږ ته په کار ده چې په دې خبره ځان ښه پوه کړو چې وطن هغه تنګ او کوچنی کور نه دی چې د یوه پلار او د یوې مور اولادونه بـه پـه کـې استوګنه لري او نه هغه کلی دی چې ټول اوسېدونکي به یې یو خېل یا یو قوم وي په دې اوسنۍ زمانه کې اوس ځینې داسې کورونه شته چې یو مسلمان پښتون له یوې روسۍ یا امریکایۍ مېرمنې سره په کې اوسي او دواړه د یوه اولاد مور او پلار وي.

هر کله چې په یوه کاله کې دا حال وي، نو په یوه لوی وطن کې به ولې هندو او مسلمان شیعه او سني، پښتون او تاجک د یوه ملت په حیث نه اوسېږي.

زه داسې دوه وروڼه پېژنم چې يو پښتو وايي او بل فارسي، داسې پښتانه پلرونه مې هم لېدلي دي چې اولادونه يې پښتو نشي ويلی.

که موږ په پښتو او فارسي ژبه کې ښه ځېړنه وکړو او لرې نظر وکړو،دواړه ژبې د يوه باغ ونې دي چې نيلې او ريښې يې يو له بله تړلې دي.

دا چې موږ د افغانستان اوسېدونکي د پښتون، تاجک، نورستاني، بدخشي، ترکمن، ازبک، هزاره، ايماق او عرب په نامه يادوو عيناً هماغسې مثال لري، لکه چې پښتون د مومند، شينواري، اپرېدي، صافي، مسعود، يوسفزي، اڅکزي، کاکړ، بارکزي او سدوزي په نومونو يادوو.

په دغسې خلکو او متعددو نومونو زموږ ملي وحدت هېڅکله نه خرابېږي او هر څوک پوهېږي چې:

هزارخونې واړه ښار يو بغداد دی.

څنګه چې د يوه وجود غړی ډېر نومونه لري، لکه: لاس، پښې، سر، غوږ، پوزه، سترګې او داسې نور... دغه شان د يوه ملت اعضاء او اجزاء هم دي چې په ډېرو نومونو يادېږي، مګر ملت يو وي او وطن هم د کلو او ښارونو په بېلا بېلو نومونو نه بېلېږي. د وطن په باغ او بڼ کې راز راز ونې او بوټي وي چې پانې، مېوې او ګلونه يې يو له بله ډېر فرق لري، مګر باغ يو وي او دغه د ونو بوټو اختلاف د باغ يووالي ته څه زيان او ضرر نه رسوي.

د وطن او ملت لپاره باغ ډېر ښه مثال دی:

په يوه شعر کې چې باغ يې عنوان دی د وطن او ملت تصويريې داسې اېستل شوی دی:

| | |
|---|---|
| يوه باغ کې وې ولاړې ډېرې ونې | هره پاڼه يې لايقه د ستاينې |
| خوا په خوا غاړه په غاړه خوله په خوله وې | له يوې خاورې پيدا د يو کاله وې |
| له يوې ولې اوبه ورته راتللې | په يوه هوا کې ټولې لوئېدلې |
| د دې ټولو يو خزان او يو بهار و | ښه او بد يې و شريک يو يې واکدارو |
| ځينې جګې ځينې ټيټې کوز او پاس وې | لګه ګوتې د يوه وجود د لاس وې |
| چا مېوه لرله چا ښايسته ګلونه | د چا سيوری و ډېر ښه د چا قد ونه |
| چنار لوی او شفتالو لکه ماشوم و | د منې او ناک توپير له ورا معلوم و |
| له يو سره لويې وه نور څه نه و | بل سره د رنګ او خوند نصيب ډېر ښه و |
| د مرغانو نغمې وې په کې څو رازه | هر مرغه مو پېژانده له خپل اوازه |
| رنګا رنګ ګلونه وي په يو چمن کې | لکه وي چې ولسونه په وطن کې |
| په حقوقو کې يې نه و څه توپير | باغبان و په هرې ونې ډېر زهير |
| يو له بله يې په هر حال کې شرکت و | په تمامه معنا يو صحيح ملت و |
| مملکت همدغه شان وګڼه درروه | واخله درس د خپل نظر له سپين او توره |
| دوه سکه وروڼه لري بېل بېل نومونه | بېل رنګونه بېل غږونه بېل خويونه |
| که ته پوه شې دا بېلتون څه بېلتون نه دی | څوک وايي چې تاجک ورور د پښتون نه دی |

د نورو معلوماتو لپاره، د اروابښاد ګل پاچا الفت ليکوالي او د حبيب الله رفيع ملي زاويه اثر ته مراجعه وکړئ.

# څلورم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | ولسي نرخونه | |
| ۲_ د زده کـــــــړې پــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې | _ د ملي عنعنو او دودونو پېژندل،<br>_ د ولسي قوانينو پېژندل،<br>_ د ولسي قوانينو په ارزښت او اهميت پوهېدل،<br>_ د جملو جوړولو مهارت ترلاسه کول،<br>_ دمتن لوستل او ليکل وکړای شي،<br>_ د صفتونو، نومونو او ضميرونو پېژندل او پرې پوهېدل. | |
| ۳_ د تدریس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، ځانګړی فعاليت | |
| ۴_ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵_ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او ګروپي کار څارل او پايلې يــې پـــه کتابچه کې ليکل. | |
| ٦_ د زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه | فعاليت:<br>سلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کار کتنه او تېر لوست ارزونه | ٦ دقيقې |
| ۷- د انګيزې رامنځتـــه کول. | _ ستاسې په کور کلي او ولس کې چې د خلکو ترمنځ څه ستونزه يا شخړه پيښه شي، څنګه يې حل کوي؟<br>_ په ولس يا کور و کلي کې داسې څوک پېژنئ چې خلکو ته د ورپېـــښو ستونزو په هکله پرېکړې او فيصلې کوي؟ | ۴ دقيقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی دې په زده کوونکو متن په چوپتیا سره ولولي او د زده کوونکو نیمگړتیاوې او غلطۍ دې وراصلاح کړي.<br>_ښوونکی دې په زده کوونکوباندې سره دمتن یویوپراگراف ولولي. | _ د متن لوستل او د کلمو تلفظ او د جملو ترکیب ته پاملرنه کول.<br>_ ټول زده کوونکي په فعالیت کې برخه اخلي.<br>- څوزده کوونکي دمتن یویوپراگراف لولي اونور زده کوونکي غوږ نیسي.دستونزوپه وخت کې پوښتنه کوي. | ۳۵ دقیقې |
| - هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې په متن کې په (ټ) پیل شوې کلمې په جمله کې په خپلو کتابچوکې وکاروي: | زده کوونکي دلارښوونې سره سم کارکوي.<br>دفعالیت په حل لاس پورې کوي. | |
| _ له زده کوونکو څخه گرامري پوښتنې، لکه د نوم او صفت په اړه له مثالونو سره. | - زده کوونکي ځواب ورکوي،دنوم اوصفت مثالونه ورکوي. | |
| _ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولگي په مخکې خبرې وکړي او د لوست په مفهوم خبرې وکړي. | - زده کوونکي د لوست په مفهوم خبرې کوي. | |
| _ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځواب ووايي. | - زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. | |
| _ په ډلو د زده کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د دریم فعالیت ور کول. ښوونکی به ټول زده کوونکي څاري چې په فعالیت کې ونډه واخلي. | - په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي. | |
| - د جملو په بشپړولو اودتمرینونوپه حلولوکې زده کوونکوته لارښوونه. | - دجملو جوړول اودتمرینونو حلول. | |
| دنوي لوست ارزونه اودارزیابی لپاره پوښتنې اوبیاوروسته د کورنۍ دندې ورکول. | - زده کوونکي دارزیابي لپاره پوښتنوته ځواب وايي اوخپله کورنۍ دنده یا داشت کوي . | |

۸_ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه

مرکچي:

د مرکې غړي ته مرکچي وايي، مرکچي په عام ډول په قبیله کې د نفوذ او نامه خاوند وي. د مرکې غړي ته سپین ږیری هم وايي. د سپین ږیري کلمه د مشر په معنا ده، که یو ځوان هم د مرکې غړی وي. د سپین ږیري په نامه یادیږي. مرکچي د مرکې په وخت کې مصؤنیت لري او که څوک وربانديې حمله وکړي، هغه به د مرکې شرم ورکوي.

هغه څوک چې د مرکې غړی کیږي، باید چې ولسي نرخ یا قبیلوي قانون څخه خبروي او پرې وپوهیږي او په دې برخه کې پوره تجربه ولري. مرکچي په خپل سر حکم نه شي کولی، بلکې ترڅنګ ناست نرخي څخه پوښتنه کوي او د هغه په مطابق به حکم کوي.

د ولسي نرخونو ځانګړتیا:

۱_ دا قوانین لیکلې بڼه نه لري، د ولسي قانونپوهانو په ذهنونو او حافظو کې پراته دي.

۲_ دا قوانین ثابت او ټاکلي مواد لري، هېڅوک په کې د تصرف حق نه لري.

۳_ دا قوانین د پښتنو له یوې قبیلې څخه بلې ته توپیر لري.

۴_ د عملي کولو لپاره پولیس، څارندوی او حکومتي اداره نه لري.

۵_ دا د یوې قبیلوي او وروسته پاتې ټولنې ځانګړنې دي او د غوره خواوو ترڅنګ منفي اړخونه هم لري.

۶_ د ټولنیز ژوند د پرمختګ په بهیر کې په ټولنو کې دغه شفاهي قوانین خپل ځای مدرنو او مدني قوانینو ته پریږدي.

مچلغه: هغه ضمانت دی چې د دوو خواوو ترمنځ د مرکې د دایربدوپه وخت د مرکچیانو له خوا اخیستل کیږي. دا د دې لپاره اخیستل کیږي چې طرفین د مرکې له فیصلې څخه غاړه ونه غړوي او پریکړه بې عذره ومني.

په مچلغه کې زیاتره ټوپک اخیستل کیږي او کله کله پیسې هم ورکول کیږي، یا نور مال چې قیمت ولري، منل کیږي.

کله چې د مرکچي پریکړه دواړو خواوو ته اعلان شي، که هغه ونه منل شي مچلغه یې بیا نه ورکول کیږي او دا د مرکې او جرګې شخص اخلي، تر هغه پورې چې مچلغه له دواړو خواوو څخه وانه خیستل شي، مرکه نه جوړیږي. د مرکې په اول کې مرکچیان له دواړو خواوو څخه قول اخلي چې که پریکړه ونه مني ببرته د مچلغې اخیستلو حق نه لري، خو دا حق لري چې که په مرکې کې یې د کړې غړ وکړ او دغه کړه یې په بله مرکه کې ثابته کړه، نوبیا خپله مچلغه واخلي.

د پنځم فعالیت ځواب:

_ ولسي نرخونه ولسي قوانین دي چې په ولسونو کې د مشرانواونرخیانو په واسطه تطبیق کیږي او د خپل ټولنیز ژوند زیاتره حقوقي او جزایي مسایل ورباندې حلوي.

_ د ولسي پریکړو اصلاح نرخیان او مشران د جرګو په جوړولو سره کوي.

ـ د ولسي پرېکړو کوونکو ته جرګه مار، جرګه کوونکي او نرخيان وايي.

د شپږم فعاليت ځواب: ب جز سم دی

**۹- زياتي معلومات او ماخذونه:**

ولسي نرخونه د يو لړ حقوقي تعاملاتو او ولسي قوانينو ټولګه ده چې له زرګونو کلونو راهيسې په پښتني ټولنه کــې موجود او له يو نسل څخه بل ته په شفاهي توګه لېږدېدلې دي او دا دی تر ننه رارسېدلي دي.
د دې حقوقي نظام (ولسي نرخونو) ځواکمني او اغېزمنتيا په دې کې ده چې د دغو تېرو پېړيو په پوړيو کې د پېښو په توپاني بهير کې ثابت او په خپل ځای ټينګ پاتې شوي او تر ننه يې پايښت موندلی دی.
د دې پايښت يو ستر لامل دا هم دی چې دې حقوقو او ضوابطو د ولس له ټولنيز، روحي، معنوي، اخلاقي وضعيت او حالت سره جوړښت او سمون درلود، ځکه نو خلکو هغه د يو ارزښتناک ميراث په توګه ساتلي دي. يو بل ستر عامل يې دا دی چې پښتون ولس د خپل پت او عزت د ساتنې سره بې کچه مينه لري او دغه وضعه شوي قــوانين دغه چار په ډېره ښه او اغېزمنه توګه ترسره کولی شي، نو ځکه يې پښتانه د پت او عزت د ساتنې ضامن، د سولې او امن د ټولنيز پايښت اغېزناک لامل ګڼي.
دا حقوق د تطبيق او په عمل کې د پلي کولو لپاره د دولتي او رسمي قوانينو په څېر پوليس، څارندوی، څارنوال او نورو څارونکو او پلټونکو حکومتي ادارو ته اړتيا نه لري، بلکې ولس يې په خپله خوښه پرځان تطبيقوي او ورڅخه غاړه غړول د پښتونولۍ له اصولو مخالف کار بولي او له دغو اصولو څخه سرغړونکي ته په داسې بد نظــر کتــل کېږي چې هغه سرغړونکی شخص بيا په خپل کور، کلي او ولس کې د سترګو غړولو، خلکو ته د هسک کتلــو او ان دا چې د ژوند تېرولو جرئت بايلي.
ولسي نرخونو ته ځلی او تيره هم وايي، دغه اصول او قوانين د ټولنيز ژوندانه د بېلا بېلو برخو او مسايلو لپاره بېلې بېلې لارې چارې او مقررات لري. دا لارې چارې ځينې په عامه توګه په ټولو پښتنو کې شريکې وي او ځينې په لويو قبيلو کې سره جلا وي او هره يوه يې خپلې قبيلې ته منسوبوي، مثلاً د وزيرو پښتني قبيله خپل ولــسي قــانون تــه ((وزيري نرخ)) وايي او په احمدزو کې د ((احمدزيو نرخ)) په نوم يادېږي.
په پښتني ټولنه کې د دې نرخونو ارزښت او درنښت له دې متل څخه هم ډېر ښه څرګندېږي چې وايي: ((له کلــي ووځه، خو له نرخه مه ووځه))
عبدالرحمان پژواک په خپل ليکلي اثر ((تعاملات حقوقيه و جزائيه ملي)) کې د ولسي نرخونو پــه اړه ليکــي: ((د پښتنو هره قبيله خپل ځانګړي قوانين لري او جزايي جريمه  يې د ګناه په مقابل کې توپير کوي. مثلاً د يو زخم پور يا تاوان د مومندو په ولسي قانون کې يو رنګ او د اپريدو په قانون کې بل ډول ټاکل کېږي، همدغه وجه ده چې يوې تيرې ته ((درنه)) او بلې ته ((سپکه)) وايي.
پژواک په دغه کتاب کې هغه مهمې تيرې يا نرخونه چې په پښتني قبيلو کې ډېر شهرت لــري، پــه دوو ډلــو او کتګوريو وېشي. نوموړی په دې ډلې کې د مومندو، احمدزيو، اپريدو، منګلو او ځدرانو نرخونه د لويوالي، درنښت او اهميت له مخې په لومړۍ درجه او پوړ کې راوستي دي.
لنډه دا چې د پښتو هره لويه يا وړه قبيله ولسي نرخونه او تيرې لري چې د حقوقي او جزايي تعاملاتو له مخې يوه د

بل په نسبت لږو ډېر دروندوالی او سپکوالی، کره والی او ناکره والی لري.
د یادونې وړه ده چې دا ټول قوانین ثابت او ټاکلي مواد لري او هېڅوک په کې د تصرف حق نه لري، دا هم بایـــد څرګنده کړو چې د پښتني ټولنې هر وګړی په بشپړه توګه قانونپوه نه دی.
په هره قبیله کې څو کسه سپین ږیري او مخصوص اشخاص وي چې د دغو قوانینو متخصصین ګڼل کېږي. د هغوی دا قوانین زده وي، په هر ځای کې چې اړتیا پیښه شي، خلک دوی راغواړي.
همد وی بیا د جرګو مرکو په لړ کې مسئلې حل کوي او د دغو ولسي قوانینو له مخې پرېکړې اعلانوي.
په پښتني ټولنه کې د دغو قبیلوي قوانینو د دومره ټینګښت علت دا دی چې په دغسې ټولنـــو کـــې د دولـــت او حکومت اغېز یا هېڅ نه و او یا ډېر زیات محدود و. له همدې کبله ولسونه اړ کېدل چې د خپل ټـــولنیز ژونـــد د خوندیتوب او تضمین لپاره داسې کوټلي قوانین ولري چې هره ورځ ورسره د یو کلي او ټبر خلک مخامخ کېـــږي.
دوی ته لازم وو چې د چارو د ښه ترسره کېدو او د خپل منځي ستونزو د حل لپاره دغه ولسي نرخونه چـــې پـــه حقیقت کې ((ولسي قوانین)) په پام کې ولري او عملي یې کړي.
کله چې یوه ټولنه له اقتصادي، کلتوري او ټولنیز پلوه وده او پرمختګ کوي، دولت او حکومت پیاوړی کېږي او د اساسي قانون په څنګ کې د ټولنیز ژوند د تنظیم لپاره د وخت، د حالاتو او اړتیاوو په پام کې ساتلو سره ځانګړي قوانین جوړوي، نو همدغه قوانین په حقیقت کې د دغو ولسي نرخونو شفاهي قوانینو ځای نیسي.
ښوونکی دې د ولسي نرخونو او قوانینو د ارزښتونو په څنګ کې خپلو زده کوونکو ته د دغو نرخونو ډېر وروسته پاتې او منفي خواوې هم بیان کړي، لکه د سورې ورکول چې مرګ یې وروړ یا پلار یا تره او تربور وکړي، خو یوه بې ګناه او یا کوچنۍ جلۍ په بدو کې ورکړل شي چې دا په یو مظلوم انسان لوی ظلم دی او ټول عمر یې تـــریخ تېرېږي. دغه راز د بدل او انتقام روحیه هم کله کله په داسې ښه دوام پیدا کوي چې ډېر بېګناه خلک په کې تبـــاه کېږي.
همدا راز نورې خواوې دې هم ښوونکی زده کوونکو ته څرګندې کړي.

# پنځم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | فعل: د جملې مهمه برخه | |
| ۲ـ د زده کــــــړې پوهنیزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې | ـ د متن لوستل او لیکل وکړای شي،<br>ـ د پښتو ژبې د ګرامري قواعدو پېژندل او پرې پوهېدل،<br>ـ د فعل او د هغه د بېلا بېلو ډولونو پېژندل،<br>ـ د جملې په جوړښت کې د فعل د ځای پېژندل او په اهمیت يې پوهېدل،<br>ـ د نوو کلمو په معنا او په جملو کې د کارولو لارې چارې زده کول. | |
| ۳ـ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴ـ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کار څارل او پایلې يې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦ـ د زده کــــړې او تدریس فعالیتونه | لومړی فعالیت:<br>سلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل،دکورني کار کتنه. | ٦ دقیقې |
| ۷- د انګیزې رامنځته کول | - د فعل او د هغه د ډولونو په اړه په څه پوهېږئ؟<br>- که فعلونه نه وي جمله به جوړه شي؟<br>اودڅوپوښتنوپه کولوسره دتېر لوست ارزيابي. | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې په زده کوونکو متن په چوپتیا سره ولولي،بیا دې څو زده کوونکي متن ولولي، ښوونکی دې د زده کوونکو نیمګړتیاوې او غلطۍ وراصلاح کړي.<br>_ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو لارښوونه او د هغو تشویق او هڅونه.<br>_ د زده کوونکو په ډلو وېشل او د فعالیت مطابق اجراات کول او د زده کوونکو څارل چې په فعالیت کې برخه واخلي. | _ د متن لوستل او د کلمو تلفظ ته متوجې کیدل.<br>_ زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي اود فعالیتونو په حل لاس پورې کوي.<br>–ګرامري پوښتنوته ځواب ور کوي.<br>– زده کوونکي دټولګي په مخ کې دلوست مفهوم وایي. | ۳۵<br>دقیقې |
| _ د متن له فعالیت سره سم له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې کو ل او د نه پوهېدو په وخت کې له زده کوونکو سره مرسته کول.<br>_ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې د لوست په مفهوم خبرې وکړي.<br>_ په زده کوونکو باندې په خپلوکتا بچوکې دجملولیکل اوپه هغو کې لازمي او متعدي فعلونه په نښه کول اودیوتن پواسط ویل چې ښوونکي به یې تیروتنې سموي. | –زده کوونکي په خپلوکتابچوکې جملې لیکي اوپه هغوکې لازمي اومتعدي فعلونه کاروي خپلوتیروتنوته ګوري او هغه اصلاح کوي. | |
| _ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې د زده کوونکو لارښوونه.<br>_ په زده کوونکو باندې د شپېړم فعالیت د جملو سمول، ښوونکی باید ټول زده کوونکي وڅاري چې په فعالیت کې برخه واخلي.<br>_په زده کوونکو داووم فعالیت اجرا کول.<br>_ د متن د لنډیز ویل او بیا له زده کوونکو څخه د ارزیابۍ لپاره پوښتنه کول او د کورني کار ورکول | – زده کوونکي جملې بشپړوي اودتمرینونو په حلولوکې برخه اخلي.<br>– دشپېړم فعالیت اجرا کول اودجملو سمول.<br>– په فعالیت کې برخه اخلي.<br>_ زده کوونکي د ارزیابي لپاره پوښتنو ته ځواب وایي د کورنۍ دندې یاداشت اخلي. | |

۸– د متن ستونزمنوپوښتنو ته ځوابونه:
ددویم فعالیت ځواب:
زه پرون ښارته تللی وم
–زلمی لیک لیکي. حال زمانه
–زلمی به ډوډۍ وخوري. راتلونکي زمانه
ماډوډۍ خوړلې ده. ماضي زمانه
– ته به ښوونځي ته لاړه شې. راتلونکي زمانه
ددویم فعالیت ځواب:
– که په وینا کې فعل ونه کارول شي جمله نیمګړې د ه اوجمله نه بلل کیږي بلکې عبارت دی.
– د فعل له لوست نه مودا نتیجه ترلاسه کړه چې په فعل سره دجملې بشپړول موزده کړل.
–لازمي فعل هغه دی چې په جمله کې یوازې فاعل غواړي اومتعدي هغه دی چې په جمله کې مفعول اوفاعل دواړه غواړي:
دپنځم فعالیت حل:
–وویل متعدي، ووایه متعدي،راوړل لازمي،ژړل لازمي،پوښتنه کول متعدي، غورځیدل لازمي ،تلل لازمي
دشپږم فعالیت حل:
– زه ښوونځي ته تللی وم.
– ماپه ښوونځي کې لیک لیکلی و.
–ما په کورکې ډوډۍ خوړلې وه.
داوومې پوښتنې حل:
فعل دزمانې په لحاظ په درې ډوله دی:
حال، مستقبل،ماضي
که چیرې په یوه جمله کې زمانه بدلون ومومي، نو فعل هم بدلون مومي
دویم فعالیت ځواب: زه پرون ښار ته تللی وم.
ــ زلمی لیک لیکي. حال زمانه.
ــ زلمی به ډوډۍ وخوري. راتلونکی زمانه.
ــ ما ډوډۍ خوړلې ده، ماضي.
ــ ته به ښوونځي ته لاړه شې. راتلونکی زمانه.
د دریم فعالیت ځواب:
ــ که په وینا کې فعل ونه کارول شي،جمله نیمګړې ده او جمله نه بلل کېږي، بلکې عبارت ورته وایي.
ــ د فعل له لوست څخه مو دا نتیجه ترلاسه کړه چې په فعل سره د جملې بشپړول مو زده کړل.
ــ لازمي هغه فعل دی چې په جمله کې یوازې فاعل غواړي او متعدي هغه دی چې په جمله کې فاعـــل او مفعـــول

دواړه غواړي.

د پنځم فعالیت ځواب:
ــ وویل: متعدي
ــ تلل: لازمي
ــ ووایه: متعدي
ــ راوړل: لازمي
ــ ژړل: لازمي
ــ پوښتنه کول: متعدي
ــ غورځېدل: لازمي

شپږم فعالیت ځواب:
ــ زه ښوونځي ته تللی وم.
ــ ما په ښوونځي کې لیک لیکلی و.
ــ ما په کور کې ډوډۍ خوړلې وه.

د اوومې پوښتنې ځواب:
فعل د زمانې په لحاظ درې ډوله دی، (حال، مستقبل، ماضي)
ــ که چېرې په جمله کې زمانه بدلون ومومي، فعل هم بدلون مومي.

## ۹- اضافي معلومات

ښاغلی ښوونکیه! د فعل پېژندنه او د هغه ځینې ډولونه مو په لوست کې درپېژندلي دي. دلته تاسې ته د زیاتو معلوماتو په توګه یو لړ معلومات وړاندې کوو.
یو فعل معمولاً درې مطلبه ښکاره کوي:
۱ــ دا چې یو چا یا یو شي څه وکړل؟ لکه: احمد لیک لیکي.
۲ــ دا چې په یو چا یا یو شي باندې څه وشول، لکه: لیک ولیکل شو، ډوډۍ وخوړل شوه.
۳ــ دا چې یو څوک یا یو شی څرنګه دی، لکه: لیک لیکل شوی دی، ډوډۍ خوړل شوې ده.
فعل یو پراخ مفهوم لري او بېلا بېل موضوعات په خپله پراخه لمن کې رانغاړي، لکه څنګه چې په یوه زمانه کې د یو کار او پېښې په کېدو او پېښېدلو دلالت کوي، په یوې مشخصې او ټاکلې زمانې پورې اړه لري، ځانګړې ریښې لري، د اشتقاق ځانګړې بڼې او صورتونه لري. دلته یې دا بېلې بېلې برخې په لنډه توګه درپېژنو:
**د فعل ریښه:** ریښه د فعل اصل او بنسټ دی. په عام ډول ریښه هغې کلمې ته ویل کېږي چې تاړی (وندونه) په هغې پورې نښلي او نوې کلمې جوړوي. د فعل ریښه (خور) په خورم، خورو، خورې فعلونو کې (م. و. ې) وندونه دي.

**د فعل گرداني اړخونه:** په پښتو ژبه کې فعل په عمومي توګه د لاندې اړخونو له مخې ګردانېږي:
(۱) د شخص له مخې (۲) د ګڼې یا عدد له مخې (۳) د جنس له مخې
**د فعل وجهې:** فعل د وینا او بڼې له پلوه په دې لاندې بېلا بېلو ډولونو ویشل کېږي:
۱ــ اخباري وجه، لکه: حامد بریالی شو. ۲ــ امري وجه، لکه: بازار ته لاړ شه. ۳ــ التزامي یا احتمالي وجه، لکه: ننګیالی به په سفر تللی وي. ۴ــ تمنایي وجه، لکه: کاشکې ته مې لیدلی وای. ۵ــ وصفي وجه، لکه: احمد خندل خوني ته ننووت. ٦ــ مصدري وجه، لکه: لیدل کتل مو سره وشول. ۷ــ امکاني وجه، لکه: ما ولیدلای شو.
**د فعل صیغه:** په پښتو ژبه کې فعل د صیغې له مخې په معلوم او مجهول فعل ویشل کېږي. معلوم فعل هغه دی چې فاعل یې معلوم وي، لکه: احمد لیک ولیکه او مجهول هغه فعل دی چې فاعل معلوم نه وي، لکه: دیوال وغورځول شو، درس ولوستل شو او نور.
د زیاتو معلوماتو لپاره دا لاندې کتابونه وګورئ:
۱ــ پښتو غږ پوهنه او ویې پوهنه، پوهنوال صابر خویشکی.
۲ــ د پښتو ژبې لنډ ګرامر، محقق سید محی الدین هاشمي.
۳ــ پښتو پښوونه، پوهاند داکتر مجاور احمد زیار.
۴ــ پښتو ګرامر، پوهاند صدیق الله رښتین.

# شپږم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | کار او زیار | |
| ۲ـ د زده کـــــړې (پـــوهنیزې، مهـــارتي اوذهنیتي موخې | ـ د متن لوستل او لیکل وکړای شي،<br>ـ د کار او زیار په ارزښت او اهمیت پوهېدل (پېژندنه) ،<br>ـ له کار او زیار سره د زده کوونکو مینه او علاقه پیداکول،<br>ـ د فعلونو او په جملوکې د هغو د ځایونو پېژندل،<br>ـ د جملو جوړولو ځواک او مهارت ترلاسه کول. | |
| ۳ـ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانگړی فعالیت | |
| ۴ـ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونې لارې اود ارزونې وسیلې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او گروپي کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦ـ د زده کـــړې او تدریس فعالیتونه | لومړی فعالیت:<br>د سلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه | ٦ دقیقې |
| ۷ –: د انگیـــــــزې رامنځته کول | ـ که د یوې ټولنې وگړي کار او زیار ونه کړي، په خپله او ټولنه به له څـــه سره مخامخ شي؟<br>ـ کار یو شخص ته څه گټه لري؟ | ۴ دقیقې |

| ۷_۱ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ــ په ځو زده کوونکو دمتن لوستل او د هغو تشويق او هڅونه. | ــ د متن په لوستلو کې د کلمو تلفظ او د جملو ترکيب ته پام کول. | ۳۵ دقيقې |
| ــ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطيو اصلاح کول. | ــ د ښوونکي خبرو ته غوږ نيول. | |
| ــ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، لکه په جملو کې دنووفعلونو کارول. | ــ د نوو فعلونو ليکل او په خپلو کتابچو کې يې په جملو کې کارول. | |
| ــ د زده کوونکو هڅونه او تشويق چې يو فعل په تخته وليکي او بل يې په جمله کې وکاروي او ښوونکی يې غلطي اصلاح کوي. | ــ نور زده کوونکي د جملو کارولو ته متوجې کېږي اوپه فعاليتونوکې عملي برخه اخلي . | |
| ــ په زده کوونکو د کتاب د متن ۴ او ۵ فعاليتونه اجراء کول، خو ښوونکی دې ځار وکړي چې ټول زده کوونکي په کې برخه واخلي، که ستونزې وي هغه دې ورته حل کړي. | ــ زده کوونکي په ۴ او۵ فعاليتونو کې برخه اخلي. | |
| ــ د جملو په بشپړولو او د تمرينونو په حلولو کې د زده کوونکو لارښوونه اومرسته. | زده کوونکي جملې بشپړوي اوپوښتنوته ځواب وايي. | |
| ــ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځواب ووايي. | | |
| ــ په ځو زده کوونکوباندې د کار د ارزښت په هکله خبرې کول چې پوښتنو ته ځواب ورکړي. | – پوښتنوته ځوابونه وايي. | |
| ــ په زده کوونکود اووم فعاليت اجراء کو ل. | – زده کوونکي دکار پر ارزښت خبرې کوي اوپوښتنې ځوابوي. | |
| ــ د لوست د لنډيز ويل او په پای کې د ارزيابۍ لپاره پوښتنې کول. | | |
| ــ د کورنۍ دندې ورکول. | – د اووم فعاليت اجرا کول اود ارزونې پوښتنوته ځوابونه ورکول. | |
| | – زده کوونکي دکورنۍ دندې ياداشت اخلي. | |

۸ــ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

کار:

لغوي معنا يې کړنه او فعاليت دی. انساني کار هغه فکري يا جسمي کړنې ته ويل کېږي چې يو شخص يې په ورځني ژوند کې ترسره کوي او معمولاً د هغه په مقابل کې اجوره ترلاسه کوي. انساني کارونه معمولاً په دوه ډوله دي: معنوي کار او جسمي يا فزيکي کار چې هر ډول يې ښېلا ښېلې ځانګړنې لري.

جسمي ځواک:
هغه ځواک او قوت چې يو ژوندی موجود يې لري او د هغه په وسيله د يو کار او فعاليت ترسره کولو وړتيا لري.
پانګه: شتمني، مال، سرمايه، راټول شوي شته او پيسې ډېر ډولونه لري، لکه: اصلي پانګه، دايمي پانګه، بانکي پانګه د لګښت پانګه، مالي پانګه، صنعتي پانګه او نور.
دزياتومعلوماتولپاره وګورئ:
(پښتو پښتو تشريحي قاموس لومړی ټوک)
دکتاب څلورم اوپنځم فعاليت د کتاب له مخې ډکيږي اوبشپړې جملې په کتاب کې دي.
د اووم فعاليت ځواب په کتاب کې دی.

ټولنه:
لغوي معنا يې راټولېدل او يوځای کېدل دي اوپه اصطلاح کې د انسانانو هغې ګڼې ډلې ته وايي چې يو له بله سره راز راز اړيکې لري.

**۹- اضافي معلومات او مأخذونه:**
که څوک غواړي چې په يو کار کې ډېر پر مختګ وکړي،هغه بايد ځانته يو داسې کار غوره کړي چې شوق او مينه يې ورسره وي،ځکه چې دغسې کار د ده ټوله توجه او فکر خپل ځانته راګرځولی شي او دې ته يې نه پرېږدي چې په بله خوا کې فکر وکړي. هر کله چې د سړي ټول فکر يوه کار ته ورو ګرځي او پوره توجه ورته ولري، هرو مرو په کې ډېر پرمختګ کوي. له يوه کار سره شوق او مينه لرل، څو ګټې لري چې هغه ډېرې مهمې دي اود انسان په پرمختګ او لوړتيا کې ډېره اغېزه لري، يو دا چې سړی په کار کې ژر نه ستړی کېږي او کارور باندې نه زياتېږي ځکه چې شوق او مينه ډېر ګران کارونه سړي ته اسانوي او تکليف هم ورته ښه ښکاره کوي.
بله دا چې د شوق په اثر د سړي ټوله توجه او فکر کار ته وي او د کار ښې اسانه او سمې لارې ورته معلومېږي چې په دغه سبب په هغه کار کې هغه ته دومره تکليف نه پېښېږي.څومره چې نورو ته پېښېږي.که څوک يو کار کوي او شوق ورسره نه لري هغه هېڅکله په هغه کار کې نه بريالی کيږي او ښه نتيجه ورځني نه شي اخيستلی.
داسې کسان همېشه ستړي ستومانه وي او هغه کار چې دوی يې په ساړه زړه کوي، ډېر ګران ورته ښکاري او ورباندې بار وي. نو له دې لامله ورته بيلا بيلې ناروغۍ پېښېږي او طبيعت يې هم هميشه خفه او غمجن وي، نو په کار ده چې موږ له خپل کار او دندې سره ذوق او مينه پيدا کړو او مينه ورسره ولرو، څوک چې يو کار د شوق او مينې له مخې کوي هغه داسې مثال لري لکه چې په خپله خوښه سره هوا خوري او سيل کوي.
په هوا خورۍ او خپله طبعه ګرځېدو باندې هېڅوک نه ستړی کېږي او که لږ څه ستړی ستومانه شوی هم وي،هغه ستړيا او ستوماني ورته دومره ډېره ستوماني نه ښکاري. په زړه کې خوښ او خوشحاله وي.خو که همدغه هوا خوري او ګرځېده د شوق له مخې نه وي او د بل چا له خوا په زور او ناخوښۍ سره وي، نو بيا به په سړي باندې يو لوی بار او پېټی وي. په دغسې صورت کې هم د سړي بدن ستړی وي او هم يې زړه غمجن او نا‌ارامه وي.
سره له دې چې د انسان هر پرمختګ او هره ګټه په کار، زيار او کوښښ پورې اړه لري او هېڅ کار په خپله نه

کېږي، بیا هم ځینې خلک ټینګه عقیده لري او وایي چې هر څه د انسان په بخت او طالع پورې اړه لري په زیار او کوښښ باندې هېڅ نه کېږي.

دا عقیده د عامو خلکو په فکر کې ډېره ټینګه شوې ده او د دې خبرې د اثباتولو لپاره ځینې مثالونه هم ښیي، خو دوی ورباندې غولېدلي دي، لاس ترزني ناست وي او هېڅ کار ته یې لاس نه ورځي، ځینې تعلیم یافته کسان هم پیدا کېږي چې د همدې خبرې پلویان دي او وایي چې د دنیا هر پرمختګ یو چانس او برابري ده چې ځینې خلکو ته په لاس ورځي او بې له کوم تکلیف او ستونزې یې کار سمبېږي.خوځینې نور کسان که هر څومره کوښښ وکړي ژوند یې نه ښه کېږي او نه په خپل ژوند کې د خوشحالۍ مخ په سترګو ویني. دغه راز فکر چې هر چاته پیدا شي هغه د بدمرغۍ په لورې درومي او هېڅکله د سعادت او نېک مرغۍ مخ نه ویني، ځکه چې دا فکر د کار او فعالیت روح په انسان کې وژني او له هرې ګټې او هر شي څخه یې بې برخې کوي.

موږ باید په دغه راز خبرو ونه غولېږو او یقین ولرو، چې د انسان هر فکر او هر عمل د ده په حال اغېزه لري او هېڅ کار له تصمیم نیولو پرته په خپله نه کېږي. موږ باید په دې وپوهېږو چې زموږ د نن ور ځې زیار او کوښښ د بلې ورځې په حال کې ډېر اثر لري او څه شی چې موږ په یوه وخت کې کرو، هماغسې په بل وخت کې یې رېبو او حاصل یې اخلو.

د زیار او کوښښ سکه په هر ملک او هر ځای کې چلېږي او هر کار ورباندې کېږي، څوک چې په خپل کوښښ باور نه لري او کار نه کوي.هغه په حقیقت کې ډېر غولېدلي دي او له یوه ښکاره حقیقت څخه سترګې پټوي. دنیا د انسان د زیار او کار میدان دی او هغه کسان په کې په ښه شان ژوند کولی شي چې هغوی د کار قوت لري، کار کوي او همدغه راز کسان د ترقۍ جګ پوړ ته په خپل زیار او کوښښ ختلای شي.

## کار

وروره، مه ګرځه وزګار    چېرته کار لټوه، کار!
دا لټي به دې کړي خوار    چېرته کار لټوه کار!
ګوره کار کې شرافت دی    هم دولت دی، هم عزت دی
د بې کاره انسانانو    واړه عمر په ذلت دی
وي د بل د اوږو بار    چېرته کار لټوه، کار!
در په در شوې تنبلۍ کې    لاړې ورک شوې بې وسۍ کې
دې میراتي پسمانۍ کې    چېرته کار لټوه، کار!
پرېږده فخر په نسب نور    ته په څه کم یې له چانه
مه شرمېږه په روزګار    خو مړې بودوه، ګرانه
د خپل لاس ګټه خوره، ځوانه    چېرته کار لټوه، کار!
ځان خولې په کسب او کار کړه    زه ((تسل)) به دې شم ځار

(محمد عارف تسل)

# اووم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | د اوښکو ارزاني | |
| ۲ـ د زده کـــــــــړې پــــوهنیزې، مهــــارتي اوذهنیتي موخې | ـ د اوښکو په عاطفي ارزښت او اهمیت پوهېدل،<br>ـ په زده کوونکو کې د خواخوږۍ او همدردۍ روحیه پیاوړې کول،<br>ـ د ادبي او هنري نثر پېژندنه،<br>ـ د قیام الدین خادم له اثارو سره اشنایي،<br>ـ د صفتونو پېژندل او د جملو جوړولو ځواک پیداکول. | |
| ۳ـ د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی کار | |
| ۴ـ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونې لارې اود ارزونې وسیلې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کار څارل او پایلې یــې پــه کتابچه کې لیکل. | |
| ٦ـ د زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>د سلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کـــار کتنه<br>اودتیرلوست ارزونه | ٦ دقیقې |
| ۷ـ د انګیزې رامنځتــــه کول | ـ اوښکې له سترګو ولې او په کوم حالت کې بهیږي؟<br>ـ تاسو چې د چا پر مخ اوښکې ووینئ څه فکر کوئ او څه احساس درته پیدا کېږي؟ | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| _ په زده کوونکو لومړی درس په چوپتیا سره لولي،،بیا دې څو زده کوونکي په خپله خوښه یو یو پراګراف ولولي. | _ د متن لوستل، د کلمو تلفظ او د جملو ترکیب ته توجه | ۳۵ دقیقې |
| _ په ډلو د زده کوونکو وېشل او د فعالیتونو په مطابق کار کول، د زده کوونکو څارل چې ټول په کې برخه واخلي. | _ د زده کوونکو توجه کول | |
| _ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې چې مفردې کلمې په جملو بدلې کړي او بیا یې ولولي. | _ زده کوونکي مفردې کلمې په جمله بدلوي. | |
| _ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي. | _ نور زده کوونکي ورته غوږ ږدي. | |
| _ په زده کوونکو د یو دردېدلي انسان او ورسره دوستي تمثیل کړي. | | |
| _ په څو زده کوونکو د متن په مفهوم خبرې کول. زده کوونکي په ډلو ویشل اوهرې ډلې ته د فعالیت ټاکل چې یویوپراګراف ولولي اوبل یې په تخته ولیکي. | _ نور زده کوونکي ورته غوږ ږدي. | |
| _ ښوونکی د لوست ټول فعالیتونه په زده کوونکو کار کوي، د نیمګړتیا په وخت کې مرسته کوي.<br>_دلوست لنډیز وایي | | |
| _ د ارزونې پوښتنې کوي او بیا کورنۍ دنده ورکوي. | – زده کوونکي د کورنۍ دندې یاداشت اخلي او په کور کې یې ترسره کوي. | |

۸_ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

عاطفه:

لغوي معنا یې مهرباني، شفقت او زړه سوی دی. په اصطلاحي لحاظ د یوې خبرې بلې سره د اړیکې ورکولو ته ویل کېږي. په عامه توګه مینه، کینه، خوښي، ویره او هڅېدنه دا ټول عواطف نومېږي. (پښتو _ پښتو تشریحي قاموس)

ادبي نثر:
هغه نثر چې هنري او ادبي ارزښت لري، له لوړ تخيل او ادبي فنونو (استعارو، کنايو) څخه په کې کار اخيستل شوی وي. احساس او جذبه په ادبي الفاظو کې لېږدوي.
فيشني شيان:
هغه شيان چې د ظاهري ښکلا او تجمل لپاره وي،له بنسټيز ارزښت او اهميت نه برخمن نه وي او د انسان اساسي اړتياوې نه پوره کوي.

ټولنيزه نېکمرغي:
هغه خوښي، هوساينه، سوکالي چې د ټولنې د ټولو وګړو لپاره وي. يوازې ديو فرد يا وګړي لپاره نه وي.
ضمير:
لغوي معنا يې وجدان او اخلاقي شعور دی او په اصطلاحي معنا او مفهوم ضمير د انسان هغه خصوصيت او ځانګړنه ده چې د هغه په وسيله د ځينو ټاکلو افعالو د اخلاقي ارزښت په باره کې احکام صادروي، کله چې دغه شعور د فرد د راتلونکو اعمالو قضاوت کوي، خو بيا هم د خوښۍ او رضايت احساس ځينې پيدا کېږي او يـــا د پـــښېمانۍ او ندامت. دلته اخلاقي قضاوت کېږي او ويل کېږي: باوجدانه سړی، بې وجدانه سړی.

په بار بار د خپل استاد منت راباندې          چې بې له رنګه يې صفا زما ضمير کړ

(پښتو ـ پښتو تشريحي قاموس) ۳۰۷۱ مخ، څلورم ټوک.
د دريم فعاليت ځواب:
ـ اوښکې څکه له سترګو بهېږي چې په انسان مصيبت او خواشيني راغلې وي.
ـ اوښکې بهېدل د درد، غم خواشينۍ، بې وزلۍ او ستونزو د رامنځته کېدو ښکارندويي کوي.

**۹ـ اضافي معلومات:**
د ((اوښکو ارزاني)) د اروابښاد قيام الدين خادم نثري ليکنه ده چې د نوموړي په ((خيالي دنيا)) نومي اثر کې چاپ شوې ده. دا ليکنه د فورم له مخې ((ادبي ټوټه)) ده. دلته لومړی ښاغلي ښوونکي ته د اضافي معلوماتو په توګه ادبي ټوټه ورپېژنو.

**ادبي ټوټه** :
ادبي ټوټه د نثري يا هنري ادبياتو يو ځانګړی ژانر (ډول) دی چې ادبپوهانو د ((منثور شعر)) او لطيــف ادب پــه نومونو هم ياد کړي او دا ځکه چې اصلاً نثر دی، خو شعري کيفيت لري.
د ادبي ټوټې د پېژندنې په لړ کې ويل کېږي: ادبي ټوټه اصلاً نثري ليکنه ده، خو د شعر کيفيت او خوند لري. په دې

ډول لیکنو کې د لوړې ادبي انشاء خیال ساتل کېږي، معمولاً حکایتي بڼه لري، د یو حقیقت او واقعیت په هکله په زړه پورې تشریح او توضیح کوي، خو دا توضیح او تشریح په داسې رنګینو الفاظو کې نغښتې وي چې په بشري احساس او عواطفو ډېره ژوره اغېزه کوي.

ادبي ټوټه له لنډې کیسې سره دا توپیر لري چې په لنډه کیسه کې معمولاً پېښه پیل او د خپلو حدودو په چوکاټ کې د کردار د اعمالو، مکالمو او منظرکشیو په وسیله په پرله پسې توګه پرمخ ځي او بالاخره د اوج او پایلې برخې ته رسېږي، خو حکایوي ادبي ټوټه دا ډول ځانګړنه نه لري او کله کله په کې زیاته برخه لفاظی وي.

ادبي ټوټه یا منثور شعر کله کله خوږ وي چې د یو ښه او عالي شعر په څېر خوند لري او له ډېر لوړ تخیل څخه په کې کار اخیستل شوی وي. دا ډول لیکنې ادبي نثرونه دي چې په لنډ پاخه او خواږه عبارت لیکل شوي وي او معمولاً ټولنیز مسایل، ژور عقیدوي، سیاسي او فلسفي افکار په کې نغښتي وي. لیکوال ورسره خپل شاعرانه احساس، جذبه او عواطف په ډېر خاص لیکني مهارت ملګري کوي او لوستونکي ته هر څه په داسې اندازه او الفاظو وړاندې کوي چې د هغه پر احساس، جذبې او عواطفو هم هغه ډول اغېزه کوي چې لیکوال یې غواړي. د پښتو د لنډې کیسې او ناول لومړنی لیکوال سید راحت زاخیلي دی چې د ادبي ټوټو د بنسټګر او لومړني پښتون لیکوال ویاړ ورپه برخه شوی دی چې د شلمې میلادي پېړۍ په لومړۍ یا دویمه لسیزه کې د دغه هنري ادبي ژانر لیکنه په پښتو کې پیل کړی، وروسته بیا په افغانستان کې پوهاند عبدالحی حبیبي، ګل پاچا الفت، قیام الدین خادم، عبدالرؤف بېنوا،صدیق الله رښتین، محمد جان فنا او نورو پښتو لیکوالو د ادبي ټوټې د لیکنې فن لوړ پوړ ته ورساوه.

**مأخذونه:**

۱ــ حبیب الله رفیع، زرینې ځانګې، کابل د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳۶۰ لمریز کال.

۲ــ سید محی الدین هاشمي، د لیکوالۍ فن، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور، ۱۳۷۲ لمریز کال.

۳ــ سرمحقق زلمی هېواد مل، فرهنګ زبان و ادبیات پښتو، دریم ټوک، ۱۳۶۵ لمریز کال.

۴ــ محقق سید محی الدین هاشمي، ادبپوهنه، د اریک ګرځنده کتابتونو اداره، پېښور، ۱۳۸۲ لمریز کال.

# اتم لوست

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
| --- | --- | --- |
| ۱ـ د لوست موضوع | ملي ارشيف | |
| ۲ـ د زده کـــــــړې پـــوهنيزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې | ـ د ملي ارشيف په ارزښت او اهميت باندې پوهېدنه،<br>ـ له لرغونو تاريخي ليکلو او چاپي اثارو سره اشنايي،<br>ـ د نويو لغتونو زده کول او د جملو جوړولو ځواک ترلاسه کول،<br>ـ د پښتو ((ی)) ګانې، فعلونه او ضميرونه پېژندل. | |
| ۳ـ د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، ځانګړی فعاليت | |
| ۴ـ د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونـــــــې لارې اودارزونې وسيلې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او ګروپي کار څارل او پايلې يـــې پـــه کتابچه کې ليکل. | |
| ٦ـ د زده کــــــړې او تدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کـــار کتنه اودتيرلوست ارزونه | ٦ دقيقې |
| ۷ـ د انګيزې رامنځتـــه کول | کله موپه تاريخ کې دامير عبدالرحمان خان يا حبيب الله خان نوم اوريدلی دی ؟<br>تاسو چيرې خطي نسخه ليدلې ده که موليدلې وي چيرې ساتل کيږي؟ | ۴ دقيقې |

| وخت | د زده کوونکو فعالیتونه | ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | – څو زده کوونکي د لوست دمفهوم په اړه خبرې کوي اونور زده کوونکي ورته غوږ نیسي.<br><br>– زده کوونکي فعالیت سرته رسوي.<br><br>_ پوښتنو ته ځواب ورکول.<br><br>_ځواب ورکوي.<br>– زده کوونکي د قلمي اثارودارزښت په هکله خبرې کوي اونور ورته غوږ نیسي.<br>– فعالیتونه سرته رسوي.<br><br>دمتن لنډیزته غوږ نیول او په کورکې د کورني کار بشپړول. | _ په څوزده کوونکوباندې د لوست دارزښت په هکله خبرې کول.<br><br>_ زده کوونکي په ډلو وېشل چې د دویم فعالیت له مخې اجراات وکړي.<br><br>_ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځواب ووایي.<br>_له زده کوونکونه ګرامري پوښتنې کول.<br>_ د زده کوونکو هڅوونه او تشویق چې د قلمي اثارو د ارزښت په هکله خبرې وکړي.<br>_ په ډلو د زده کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>_ د متن د لنډیز ویل.<br>_ د ارزونې لپاره پوښتنې اوپه پای کې د کورنۍ دندې ورکول. |

۸– د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

**امیر عبدالرحمن خان** د امیر محمد افضل خان زوی او دا میردوست محمد خان لمسی و. د محمد زیو د سلطنتي کورنۍ له نومیالیو واکمنانو څخه و چې په ۱۲۹۷ _ ۱۳۱۹ هـ. ش.(۱۸۸۰ _ ۱۹۰۱م.) کلونو کې د افغانستان واکمن و. په ۱۳۱۹ هـ. ش. کال مړ دی.

**حبیب الله خان** د امیر عبدالرحمن خان زوی و، د پلار له مړینې وروسته په ۱۳۱۹ هـ. ق. کال امیر شو. په ۱۲۹۷ هـ. ش. (۱۹۱۹م.) کال کې د لغمان په کله ګوش کې ووژل شو.

**لاس کښلي کتابونه:** خطي یا قلمي نسخو ته ویل کېږي. هغه مهال چې د چاپ وسایل او ماشینونه نه وو رامنځته شوي، کتابونه په لاس لیکل کېدل.

انځوریزې پاڼې: د خطي کتابونو یا نورې هغه لیکلې پاڼې چې په طلا او ډول ډول رنګونو پرې د منظرو او اشخاصو څېرې په ښکلې بڼه رسم شوي دي.

_ د ملي ارشیف ارزښت دا دی چې منقول اثار په کې ساتل کېږي.

_ دریم فعالیت ځواب:

د ملي ارشیف د لابډاینې لپاره باید اوسني اثار وساتو او نورې پرې زیات کړو.

**۹ _ اضافي معلومات او ماخذونه**:

ارشيف فرانسوي کلمه ده او په اصطلاح کې هغه ځای يا ادارې ته وايي چې پکې لاس کښلي او چاپي لرغوني اثار (کتابونه، فرمانونه، سندونه او نور) ساتل کېږي.

زموږ په هېواد کې هم داسې يوه اداره شته چې په کې ډول ډول قلمي او چاپ شوي اثار، سندونه، د پاچاهانو او واکمنانو فرمانونه او نور پکې خوندي ساتل کېږي او دا چې ټول زموږ د هېواد په ملي فرهنګ او تاريخ پورې اړه لري، نو ځکه يې دغې فرهنګي دولتي ادارې ته د ((ملي ارشيف)) نوم ورکړی دی.

البته زموږ په هېواد کې دې ته ورته نورې ادارې هم شته، لکه: ((ملي موزيم)) چې لرغوني مجسمې، سکې او نور پخواني موندل شوي ډول ډول اثار او وسلې پکې خوندي دي او همدارنګه يوه بله اداره د ((ملي ګالرۍ)) په نوم شته چې د انځور ګرۍ تابلو ګانې پکې ساتل کېږي، خو ملي ارشيف له هغو ادارو سره دا توپير لري چې په دې کې لاس کښلي (خطي) کتابونه، فرمانونه او نور سندونه چې د تاريخي پيړيو په بېلا بېلو پوړيو پورې اړه لري او همدارنګه چاپ شوي پخواني کتابونه چاپي خپرونې چې زموږ په هېواد کې د مطبعې د رامنځته کيدو او د چاپ د لړۍ په پيل کيدو سره (د امير شيرعلي خان له دويمې پلا واکمنۍ راهيسې) د هېواد په ملي ژبو (پښتو _ دري) چاپ شوي دي، په همدې ملي ارشيف کې خوندي دي. په هېواد کې د دې ملي فرهنګي ادارې له رامنځته کيدو څخه څه کم څلور لسيزې تيرېږي، خو په دې دومره موده کې هم هغې ته په لس ګونو زره قلمي او چاپي کتابونه، د مجلو، جريدو او ورځپاڼو کليکسيونونه، تاريخي فرمانونه، سندونه او ډول ډول ليکونه راټول شوي او په مناسبه توګه پکې ساتل کېږي. مينه وال کولی شي د هغو ننداره وکړي او څېړونکي د خپلو څېړنو د بشپړتيا لپاره له هغو څخه د ارشيف دننه لازمه استفاده وکړي، خو هيڅوک نشي کولی دغه اسناد او اثار له ارشيف څخه بهر کړي.

د يادونې وړ ده چې ملي ارشيف د يوې مهمې فرهنګي ادارې په توګه خپل ځانګړي تشکيلات او برخې لري. د کتابونو قلمي نسخې ځانګړې ځانګې لري او د چاپ شويو کتابونو لپاره بېله برخه ځانګړې شوې او ځانګړې مسؤلين او کارکوونکي لري. همدارنګه د خپرونو (مجلو، جريدو او ورځپاڼو) کليکسيونو په بېله ځانګه کې خوندي او فرمانونه، تاريخي او نور سندونه او د بېلا بېلو زمانو شخصي او رسمي (دولتي) ليکونه بيا په جلا برخه کې ساتل کېږي.

د افغانستان ملي ارشيف ته ورته ادارې د نړۍ په زياترو هېوادونو کې شته، نو له همدې امله په نړيواله کچه د ((سواربيکا)) په نوم يوه اداره شته چې د هغو هېوادونو له ارشيفونو سره د لازمو وسايلو او د کار کوونکو د مسلکي روزنې په برخه کې مادي او معنوي مرستې کوي چې د دوی غړي دي. زموږ د هېواد ملي ارشيف هم د ارشيفونو د نړيوال تنظيمونکي سازمان غړيتوب لري او د نومووړې ادارې له مرستو څخه وخت په وخت برخمن کېږي.

ماخذونه:

١_ اريانا دايرة المعارف، لومړی ټوک (دويم چاپ) د افغانستان د علومو اکاډمي، د اريانا دايرة المعارف مرکز، ۱۳۸۶ هـ.ش. کال.

۲_ تاريخچۀ ارشيف ملي، د اطلاعاتو او کلتور وزارت، د ملي ارشيف د ادارې خپرونه، ۱۳۵۹ هـ. ش. کال.

# نهم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | عادل واکمن | |
| ۲ـ د زده کـــــړې پوهنیزې، مهــارتي او ذهنيتي موخې | ـ د عدالت په مفهوم پوهېدل،<br>ـ د عدالت په ګټو او اهمیت باندې پوهېدنه،<br>ـ د عدالت په روحیه د زده کوونکو روزل یا په هغو کې د عدل او انصاف د اخلاقو او روحیې پیداکول،<br>ـ د مفردو او جمع کلمو پېژندل او د جملو جوړولو ځواک ترلاسه کول. | |
| ۳ـ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴ـ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونې لارې اود ارزونې وسیلې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦ـ د زده کـــړې او تدریس فعالیتونه | لومړی فعالیت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه اودتیرلوست ارزونه. | ٦ دقیقې |
| ۷ـ د انګیزې رامنځته کول | ـ د عدالت په باب مو کومه کیسه اورېدلې او یامو زده ده؟<br>ـ د عدالت په معنا او مفهوم پوهېږئ؟ | ۴ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو فعالیتونه | ۱ـ ۷ د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴۵ دقیقې | متن لولي اود نورو کیسوته غوږ نیسي.<br>ــ د ښوونکي لارښوونې ته غوږ نیول.<br>ــ زده کوونکي د لارښوونې له مخــې فعالیتونــه اجراء کوي.<br>ــ زده کوونکي د ښوونکي لارښوونې سره ســم کار کوي.<br><br>– زده کوونکي دنوم اوصفت مثالونه په جملوکې په شفاهي ډول وايي.<br>– زده کوونکي دموضوع په اړه په ټولګي کې خبرې کوي.<br><br>–زده کوونکي په ډله ییزو فعالیتونوکې برخه اخلي.<br>دکورنۍ موضوع یاد داشت کول. | ــ په څو زده کوونکو باندې د متن لوســتل او د عدالت په هکله د نورو کیسو کول.<br>ــ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیــو اصلاح کول.<br>ــ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښــتنه وکړای شي.<br>ــ په زده کوونکو دویم او دریم فعالیت اجــراء کول.<br>ــ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، لکــه د نوم او صفت په اړه له مثالونو سر ه.<br>ــ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټــولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووايي.<br>ــ که وخت و د زده کوونکو وېشل پــه ډلــو او هرې ډلې ته د ورته فعالیتونو ټاکل.<br>ــ زده کوونکو ته د دندو ورکول چې د انصاف په هکله کیسې راوړي او په ټولګي کې یې ووايي.<br>ــ د لوست د لنډیز ویل، د ارزونې پوښتنې او بیا د کورنۍ دندې ورکول. |

**۹ــ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:**

**عدل:**

د عدل لغوي معنا برابري او انصاف،د ظلم خلاف، اصلي خاوند ته یې په امانتدارۍ سره د هغه د حق رسول یا په بله وینا له حق، عدالت او قانون سره سم د یو څه په هکله فعالیت کولو ته عدل وايي.

**نوشیروان:**

لغوي معنا یې د تلپاتې روح خاوند دی، د ایران د ساساني واکمنیو د لړۍ واکمن لقب دی چې د دې کــورنۍ د واکمنانو لپاره ځانګړی شوی. دا نوشیر چې دلته یې په متن کې یادونه شوې،د نوموړې کورنۍ یوویشتم واکمن دی چې د غبا د ساساني زوی او د ژوند زمانه یې ۵۳۱ ــ ۵۷۹ م. کلونه دي. دا واکمن په عدل او انصاف کې ډېر مشهور دی او د عدل او انصاف په اړه یې په تاریخونو کې ډېرې لیکنې راغلي دي. حــضرت محمــدﷺ د دغه واکمن په زمانه کې نړۍ ته سترګې غړولې دي. (فرهنګ، معین، ۵ ټوک ۱۹۱ مخ

**ګنج پښتو:**

دا اثر مولوي احمدد تنګي (۱۲۶۱ ــ ۱۳۰۰ هــ. ق.) لیکلی دی او لومړی ځل په ۱۸۷۲ م. کال چاپ شوی دی. په دې کتاب کې ۴۹ حکایتونه چې د پند او خوند په زړه پورې خبرې او پیغامونه لري راوړي. دا د پــښتو د

ساده ولسي نثرونو له لومړنيو کتابونو څخه دی.
دا کتاب ليکوال انګرېزانوته د تدريس او پښتو ژبې د زده کړې په منظور ليکلی دی.

ساده او روان نثر: هغه نثرونه دي چې د ولس په ژبه څنګه چې ويل کېږي هغسې ليکل کېږي. په عمومي ډول پــه ساده نثرونو کې چې له ادبي نثر سره يې توپير جوت دی.په هغو کې ټولې علمي، ژورناليستکي، څېړنيزې،تحليلي او تشريحي ليکنې راځي.
د څلورم فعاليت پوښتنې په متن کې حل شوي دي.

**۹_ اضافي معلومات**:
عادل واکمن يوه کيسه يا حکايت دی چې مولوي احمد ليکلې او د هغه د حکايتونو په ټولګه ګنج پښتو کې چاپ شوی دی. دا چې د دې کيسې موضوع عدالت دی، نو دلته لازمه برېښي چې لومړی ښوونکي ته د اضافي معلوماتو په توګه د((عدالت)) په اړه لنډې او ځغلندې څرګندونې وکړو او بيا د کيسې يا حکايت د ليکوال ((مولوي احمد د تنګي د ژوند، اثارو په باب لنډ معلومات وړاندې کړو.
عدالت او مساوات يا برابري د اسلام په سپېڅلي دين کې يو داسې اساس او بنياد دی چې ټول انساني کرامتونه په هغه کې ساتل شوي او مصؤن دي او موږ د اللهﷻ له لوري په عدل کولو مؤظف يو، نو ويلی شو چې عدل زمــوږ اسلامي او ټولنيزه انساني دنده ده او د عدالت د قانون او اصولو له مخې د قوم، ملت او بالاخره د ټولې اســلامي ټولنې بنسټ په دې ولاړ دی. هغه څوک چې د الله تعالی له اوامرو سرغړونه کوي او له عدالت څخه کار نه اخلي ظالم بلل کېږي.
د اسلام په قوانينو کې د عدالت او مساوات له مخې هر ډول قومي او نژادي اختلافات منع کړای شوي دي.
د دين د حدودو په تطبيق کې هېڅ ډول توپير نه لري. هغه څوک چې پر عدل او انصاف حکم نــه کوي،هغــه د ظالمانو او فاسقانو په ډله کې شمېرل کېږي. اسلام دا حکم کوي چې مؤمن بايد د ژوند په ټولو چارو کې له انصاف او عدالت څخه کار واخلي او هغه څه چې د ځان لپاره خوښوي د بل لپاره يې هم بايد خوښ کړي او هغه چې پــر ځان يې نه لوروي، پر بل يې هم ونه لوروي. انسان بايد هېڅکله د انصاف او عدالت تله له لاسه ونه غورځوي او په هر څه کې د عدالت رعايت وکړي.

مولوي احمد:
د دې لوست د کيسې يا حکايت ليکوال مولوي احمد د کوزې پښتونخوا د پېښور د تنګي د سيمې اوسېدونکی و.
نوموړی سربېره پر دې چې د پښتو ژبې د معاصر ساده نثر بنسټګر ليکوال دی، ښه ناظم او پياوړی اديب هم و.
مولوي احمد په ۱۲۶۱ هــ. ق. کال کې زېږېدلی او د ۳۹ يا ۴۰ کلونو په عمر په ۱۳۰۰ هــ. ق. کال مړ دی.
يو شمېر منظوم اومنثور اثار يې ليکلی دي. ويل کېږي چې نوموړی د انګرېزانو د پښتو ښوونکی هم و او د هغــوی لپاره يې د پښتو په ساده نثر يو شمېر اثار ليکلي چې يو په کې ((ګنج پښتو)) دی چې د ۴۹ وړو حکايتونو او کيسو ټولګه ده او لومړی ځل په ۱۸۷۲م. کال د پادري هيوز په کليد افغاني نومي اثر کې او بيا وروسته د ځانګړی

| |
|---|
| اثر په توګه چاپ او خپور شوی دی. د مولوي احمد بل اثر تاریخ سلطان محمـــود نـــومېږي چـــې د دري ژبـــې تاریخ((فرشته)) يې پښتو ژبې ته ژباړلی او په ۱۸۷۲ م. کال چاپ شوی دی.<br>د مولوي احمد بل نثري اثر د اد م خان او درخانۍ کیسه ده چې دا هم لومړی ځل په ۱۸۷۲م. کال او بیـــا پـــه ۱۹۹۱ م. کال په پېښور کې چاپ شوې ده. |
| ماخذونه:<br>۱ــ پښتو نثر اته سوه کاله، سرمحقق زلمی هېوادمل، پېښور ۱۳۷۹ هــ. ش. کال.<br>۲ــ پښتو نثر هنداره، پوهاند رښتین، یونیورسټي بک ایجنسي، پېښور ۱۹۹۲م. کال.<br>۳ــ دپښتو ادبیاتو تاریخ معاصر دوره، ډاکټر زیورالدین زیور، پېښور، ۱۳۸۶لمریز کال.<br>۴ــ پښتو نثر تاریخي او تنقیدي جایزه، بي بي مریم، پښتو اکېډمي، پېښور، ۱۹۸۰ م.کال. |

# لسم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | عبدالرؤف بينوا | |
| ۲_ د زده کـــــــړې پوهنيزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې | _ دپښتود معاصروادبي څېرو ياشاعرانواوليکوالوسره دزده کوونکواشنايي،<br>_ د عبدالرؤف بينوا پيژندنه،<br>_ دعبدالرؤف بينوا دمنظومواومنثورواثاروپيژندنه،<br>_ دصفت پيژندنه اودجملو جوړولوځواک تر لاسه کول. | |
| ۳_ د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، ځانگړې فعاليتونه | |
| ۴_ د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵_ د ارزونـــــې لارې اودارزونې وسيلې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او گروپي کار څارل او پايلې يې په کتابچه کې ليکل. | |
| ٦_ د زده کـــــړې او تدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کار کتنه اودتېرلوست ارزونه. | ٦ دقيقې |
| ۷_ د انگيزې رامنځته کول | تاسې دهېوادله اوسنيونومياليوليکوالواوشاعرانوڅخه د چانومونه اوريدلې اود هغو کتابونه مولوستې دي ؟<br>چې په دې توگه معلومه شي چې زده کوونکي د بينوا اويـــادنورو نوميـــاليو څېروپه اړه څومره معلومات لري ؟ | ۴ دقيقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| _ په زده کوونکو پــه خپلــه خوښــه د مــتن د پراګرافونو لوستل.<br>_ د زده کوونکو د غلطیو اصلاح کول.<br>_ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې د مــتن مفهوم ووايي او ښوونکی زده کوونکي څاري چې غوږ ونیسي.<br>_ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، لکــه د نوم او صفت په اړه له مثالونو سره.<br>_ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټــولګي په مخکې د بینوا دلیکنود یوارخ په برخه کې خبرې وکړ ي.<br>_ په زده کوونکو باندې د متن د پنځم فعالیــت اجراء کول او د زده کوونکوڅارل چې ټول په کې ونډه واخلي.<br>_ د جملو په بشپړولو اود تمرینونو په حلولو کې دزده کوونکو لارښوونه.<br>_ د لوست لنډیز ویل.<br>_ د ارزونې پوښتنې او د کورنۍ دندې ورکول. | _ د متن سم لوستلو او د کلمو تلفظ ته توجــه کول.<br>_ دمتن لوستلوته غوږ نیول.<br>– دمتن مفهوم په خپلو خبروکې په لنډیز سره ویل.<br>_ زده کوونکي په متن کې نوم اوصفت پیدا کوي او په جملو کې یې کاروي.<br>– دبینوا په ادبي خوا خبرې کول.<br>_زده کوونکي په ګډه د متن فعالیــت اجــراء کوي.<br>– زده کوونکي دلوست لنډیز وایي.<br>_پوښتنوته ځواب ور کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸_ د متن ستونزمنوپوښتنو ته ځوابونه:**

**_ پښتو ادب معاصره دوره:**

**د پښتو ادبي تاریخ لیکونکو پښتو ادبیات په دریو سترو دورو وېشلي دي:**

**۱_ لرغوني دوره ۲_ منځنۍ یا کلاسیکه دوره ۳_ معاصره دوره:**

**معاصره ادبي دوره چې په هېواد کې د نوي او عصري ژوند له پیلامې سره پیل شوې او تر ننه یې بېلا بېل پړاوونه دوام لري. په هېواد کې د عصري ژوند پیلامه په تاریخي لحاظ د امیر شیرعلي خان له دویمې پلا واکمنۍ څخه پیل کېږي چې په عصري بنسټونو ولاړ دولت و او بېلا بېلې ملکي او نظامي ادارې یې درلودې، چې د مدرن ژوند نښې نښانې، لکه: مطبوعات، عصري پوهنه، کارخانې او نورېه کې رامنځته شوي وو.معاصره دوره دسراج الاخبار لــه خپریدو سره پیل کیږي اوترننه پورې رارسیږي چې بیلا بیل پړاوونه لري.**

**_ پښتو ټولنه:**

**یوه علمي فرهنګي اداره ده چې په ۱۳۱۶ هـــ. ش. کال د پښتو ژبې د ودې او پرمختیا لپاره جوړه شـــوه او تـــر ۱۳۵۷ هـــ. ش. کال پورې یې د پښتو ژبې او ادبیاتو په بېلا بېلو برخو کې د سلګونو کتابونو په خپرولو ســره د**

| |
|---|
| قدر وړ خدمتونه وکړل. په ۱۳۵۷ هـ. ش. کال ورسره د تاریخ ټولنې، اریانا دایرة المعارف ټولنې، د پښتو څېړنو د نړیوال مرکز په یو ځای کیدو د افغانستان د علومو اکاډمي جوړه شوه چې تر اوسه په همدې نوم علمي او فرهنګي فعالیتونه کوي.<br>_ دسفارت مطبوعاتي استازی:<br>سفیر په یو بهرني هېواد کې د خپل هېواد رسمي او سیاسي استازی وي. د ځینو سفارتونو په تشکیلاتو د فرهنګي چارو د سمبالښت لپاره یو مطبوعاتي ځانګه وي چې د ځانګې مسؤول ته یې مطبوعاتي استازی یا مطبوعاتي اتاشه وایي. |
| ۹_ اضافي معلومات:<br>د ارواښاد عبدالرؤف بینوا د ژوند، علمي او فرهنګي شخصیت په اړه د لوست په متن کې ډېر لنډ معلومات وړاندې شول،دلته د نوموړي د علمي فرهنګي شخصیت په اړه څه نور اضافي معلومات هم درکوو.<br>د بینوا د خپل ژوند لړو ډېر پنځه لسیزې هېواد او خلکو ته د علمي، فرهنګي او سیاسي خدمت په ډګر کې تیرې کړې دي. هغه په دې لړ کې کله مدیر و، کله په پوهنتون کې د پښتو ادبیاتو استاد، کله د پښتو ټولنې لوی مدیر، کله د کابل راډیو رئیس، کله د اطلاعاتو او فرهنګ د وزارت مرستیال او بیا د همدغه وزارت وزیر او کله یې هم په ملي شورا کې د خلکو د وکیل په توګه او کله بیا له هېواد څخه د باندې په سفارت کې د مطبوعاتي استازي اتاشه او کله هم د سفیر په توګه یې دندې ترسره کړې دي، خو په دې ټولو حالتونو کې هغه فرهنګي خدمتونو ته لومړیتوب ورکړی دی. ډېرو لوړو څوکیو او منصبونو هم له خلکو سره د هغه په غوره سلوک کې بدلون نه دی راوستی او په پوره حلم، تواضع او کمینۍ یې له خلکو سره چلند کړی دی.<br>بینوا د فرهنګي خدمت ترڅنګ په سیاسي ډګر کې هم پوره هلې ځلې کړې د ۱۳۲۴ هـ. ش.کال په شاوخوا چې د ویښ زلمیانو سیاسي او ملي غورځنګ رامنځته شو، بینوا یې له لومړنیو بنسټګرو څخه و. د نوموړي په هلو ځلو او نوښت د ((ویښ زلمیانو)) په نوم د بېلا بېلو لیکنو یوه ارزښتناکه ټولګه د کتاب په بڼه چاپ شوه. بینوا په لیکوالۍ او شاعرۍ کې اوږده، پخه او کره تجربه درلوده. د ده د نثر خیړنیزې (تحقیقي) او تخلیقي خواوې دواړه غني دي. ډرامې، کیسې او ادبي ټوټې یې هم لیکلي دي او شعرونه یې هم د لوړ تخیل ترڅنګ ډېرې ژورې معناګانې لري. ملي ټولنیز دردونه پکې هم شته او د الفاظو پوره رنګیني هم لري.<br>شعرونه یې په بهرنیو ژبو، په ځانګړې توګه په عربي، انګلیسي او روسي ژبو ژباړل شوي او خپاره شوي دي. ارواښاد بینوا د خپلو فرهنګي فعالیتونو په لړ کې په سلګونو مقالې په مطبوعاتو کې خپرې کړې او سربیره پر دغو مقالو یې د پنځوسو په شاوخوا کې علمي، ادبي او تاریخي اثار هم لیکلي چې زیاتره یې چاپ شوي دي. مورږ د لوست په متن کې د هغه د ځینو کتابونو نومونه اخیستي وو، دلته یې د زیاتو کتابونو نومونه را اخلو.<br>–اوسني لیکوال، لومړی _ دویم او دریم ټوک.<br>– د افغانستان نومیالي، لومړی، دویم، دریم او څلورم ټوک.<br>–هوتکي ها، میرویس نیکه.<br>– پریشانه افکار (د شعرونو ټولګه).<br>–پښتنې مېرمنې.دځینونامتو پښتنومیرمنو ژوندلیک |

- ادبي فنون. نثر،
- پښتونستان.نثر،
- لنډۍ.دلنډيوپه اړه معلومات
- د زړه خواله:نثر،
- پښتو څېړنې،
- چند اهنگ پښتو،
- د غنمو وږي (منظومی ويناوې).
- خوشحال خټک څه وايي؟
- پرديس،
- د پيرمحمد کاکړ ديوان،
- کاظم خان شيدا ديوان او د رحمان بابا ديوان (په پورته ديوانونو يې سريزې او تعليقات ليکلي او د ده په زيـــار چاپ شوي دي) ،
- ويښ زلميان، باچا خان،
- د لسم ټولګي پښتو قرائت،
- پښتو کلي څلورم ټوک،
- پښتو روزنه،
- زوړ ګناهګار.ډر امه،
- د افغانستان تاريخي پېښې،
- لومړی او دويم ټوک پښتنې ميرمنې،
- پښتو متلونه،
- د هسک پيغله. (دشعرونو مجموعه ) ،
- د شعرونو کليات او نور.

.

**مأخذونه:**


د زياتو معلوماتو لپاره لاندې کتابونو ته مراجعه وکړئ:

۱_ ګيتانجلي (د پوهاند عبدالشکور مفصله سريزه).

۲_ ستوری د ادب په اسمان کې، محمد داؤد وفا.

۳_ د پښتو ادبياتو تاريخ اوسنۍ دوره، پوهاند ډاکټر زيورالدين زيور.

۴_ د پښتو ادبياتو تاريخ (معاصره دوره) کانديد ا کاديمسين محمد صديق روهي.

# یوولسم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | د ځنګلونو ارزښت | |
| ۲_ د زده کــــــړې پوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې | _ د لوستلو او لیکلو زده کړه، <br> _ د استوګنې د چاپیریال او ځنګلونو له ارزښت او اهمیت سره اشنا کېدل، <br> _ د ځنګلونو ګټې او د ځنګلونو په خپل سر وهلوله امله ملي اقتصاد او چاپیریال ته دتاوانونو اوښتوسره اشناکیدل، <br> _ د چاپیریال په پاک ساتلو کې د ځنګلونوپه اهمیت پوهیدل، <br> _ دلیکلو او لوستلو د مهارت پیاوړتیا. | |
| ۳_ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴_ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵_ د ارزونـــــې لارې اودارزونې وسیلې | شفاهي ارزونه، عملي کار، <br> په کتابچه او یا جدول کې د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار د څارنې او د پایلو لیکل. | |
| ٦_ د زده کـــــړې او تدریس فعالي | لومړنی فعالیت: <br> د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه اودتیرلوست ارزونه. | ٦ دقیقې |
| ۷_ د انګیزې رامنځته کول | د لاندې پوښتنې په طرحه کولو سره د انګېزې ایجادول، <br> _ تاسې له ځنګلونو سره اشنا یاست؟ <br> _ ځنګلونه څه ګټې لري؟ <br> _ ولې مو ځنګلونه خوښېږي؟ | ۴ دقیقې |

| وخت | د زده کوونکو فعالیتونه | ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | _ د متن په لوستلو کې د کلمو تلفظ او جملو سم ویلوته پاملرنه کول .<br>_ د ښوونکي لارښوونو ته غوږ نیول.<br>_ په ټولګي کې د فعالیت سرته رسول.<br>_ زده کوونکي ځوابونه ورکوي اوبیا د ځنګلونو په اهمیت خبرې کوي.<br>– زده کوونکي دلوست لنډیز په خپلوخبروکې څرګندوي.<br>– زده کوونکي دریم فعالیت اجرا کوي.<br>_ زده کوونکي ځوابونه ورکوي.<br>زده کوونکي پنځم فعالیت سرته رسوي.<br>_ دښوونکي لنډیزاوپوښتنې ځوابوي .<br>_ کورنۍ دنده په کور کې ترسره کوي. | _ په زده کوونکو باندې لومړی په چوپتیا د متن لوستل او بیا په څو زده کوونکو باندې یو یو پراګراف لوستل.<br>_ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیو اصلاح کول.<br>_ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې د ځنګلونو ګټې په خپلو کتابچو کې ولیکي. ښوونکی څارنه کوي چې ټول په فعالیت کې برخه واخلي، بیا ټول زده کوونکي د ټولګي په مخ کې د متن په لوستلو کې برخه اخلي.<br>_ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې وشي او بیا زده کوونکي د ځنګلونو په اهمیت خبرې کوي.<br>_ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې د لوست په مفهوم خبرې وکړي.<br>_ په زده کوونکو باندې د دې لوست د دریم فعالیت په هکله په کتابونو کې لیکل.<br>_ د څلورم فعالیت په هکله له زده کوونکو پوښتنې کول او د ځنګله په هکله د وړاند وینو اورېدل.<br>_ په زده کوونکو باندې پنځم فعالیت سرته رسول.<br>_ د لوست لنډیز ویل او د زده کوونکو ارزونه.<br>_ د کورنۍ دندې ورکول. |

۸_ د متن پوښتنو ته ځوابونه:

ځنګلونه هغه ډېرې او ګڼې مېوه لرونکي او غېر مېوه لورنکي ونې دي چې په غرو کې په خپله شنې شوې وي. له لرګیو او مېوو څخه یې دولت اونژدې ولسونه د یو ټاکلي قانون لاندې استفاده کوي.

دولت او ولسي خلک په مصنوعي ډول هم ځنګلونه جوړوي اود هغو پالنه کوي.

ځنګلونه په زیاتو هېوادونو کې د دولت ملکیت وي. وړاندیزونه دا دي چې باید ددولت اړوند ارګانونه د ځنګلونو هر اړخیزه ساتنه وکړي.

او نور مصنوعي ځنګلونه زیات کړي او موجود ترې خراب نه شي.

**۹_ اضافي معلومات او ماخذونه**:
ځنګلونه د کرنیز او زراعتي سکتور د یوې سترې برخې په توګه د یو هېواد او د ملي اقتصاد په وده او پیاوړتیا کې د یادونې وړ ارزښت لري.
ځنګلونه یوازې د لرګیو د تولید له امله ارزښت لري، بلکې د چاپېریال د ښېرازۍ او هوا د پا کوالي ګټې هم لري.
ځنګلونه که له یوې خوادسون اوپه ودانیو کې د کارولو لپاره ډېر مهم دي، له بلې خوا پر ډول ډول مېووسربېره د څارویو د روزنې لپاره مناسب چاپېریال جوړوي او د وحشي حېواناتو استوګنځایونه هم دي. د خاورې ساتنه کوي، د سیلابونو د تخریب په وړاندې مخنیوی کوي. د مناسبې هوا او اقلیم په را منځته کولو او د سیل او تفریح لپاره د مناسبو ځایونو په رامنځته کولو کې پرېکنده او ارزښتناکه ونډه لري.

زموږ د هېواد ځنګل لرونکې سیمې:
سره له دې چې افغانستان یو غرنی هېواد دی. د غرونو په پرتله یې بیا ځنګلونه هومره ډېر نه دي. د هیواد په مرکزي او شمالي برخو کې د هندوکش د لوړو غرونو لړۍ چې زیاتره برخې یې تل په واورو پټې وي.د ځنګلونو د رامنځته کېدو لپاره وړ او مساعدې نه دي.بیا هم کوم ځنګلونه چې زموږ په هېواد کې شته که سمه ساتنه او پالنه یې وشي، د هېوادد اوسېدونکو لپاره تر ډېرې اندازې کفایت کوي او د هېواد د ملي اقتصادپه پیاوړتیا کې ارزښتناکه ونډه ترسره کولی شي.
د احصایې له مخې د افغانستان ۲،۴ فیصده خاوره چې دوه میلیونه هکتاره کېږي ځنګلونو پوښلې ده. د مـــصنوعي سپوږمیو په واسطه هغه نخښې چې برابرې شوي دي، داسې څرګندېږي چې ځنګلونه د افغانستان په ټوله خاوره کې یو شان او برابر نه دي وېشل شوي. د مثال په ډول د پکتیا، کونړ او بادغیس په ولایتونو کې له نور مالې انـــدازې څخه زیات او په مقابل کې په مرکزي او جنوب لویدیځو سیمو کې بیا ځنګل نشته.
د افغانستان مهم تجارتي ارزښت لرونکي ځنګلونه په لاندې ډول درپېژنو:
د کونړ ځنګلونه:
د کونړ ځنګلونه تقریباً ٦٦٥٠٠ هکتاره مساحت لري. ونې، بوټې یې زیاتره نښتر، څېړۍ او ښوون دي چې ډېـــر ستر اقتصادي ارزښت لري. د ۱۳۵۷ لمریز کال دمخه یې د کلني تولید ظرفیت پنځه ویشت میلیونه متر مکعبـــه لرګي اټکل شوي وو. د یوې احصایې له مخې په ۱۹۷۳م. کال کې ۱۴۵ زره متره مکعبه لرګـــي د کـــونړ لـــه ځنګلونو څخه وهل شوي وو چې یوازې ۸٦ زره متر مکعبه چارتراش لرګي ورڅخه ترلاسه شوي او ۵۸ فیصده یې د عنعنوي پرې کولو او سیمه ییز ترانسپورت له امله ضایع شوی وو.

**د پکتیا ځنګلونه**:
د پکتیا ځنګلونو مساحت ۱۴۵۰۰ هکتاره ساحه ده چې ۲،۱۳ میلیونه مکعبه تجارتي لرګي ظرفیت یې درلود. په دغه سیمه کې د کلني پرېکولو کچه د کونړ پنځه برابره یعنې پنځه زره هکتاره اټکل شوي ده.

همدارنګه دغه سیمه ۱٦۵ زره هکتاره د زیتون او څېړۍ د لرګیو ځنګل لري. د یادوني وړ ده چې د پکتیا ولایت ځنګلونه د زیاتو جنغوزو د ترلاسه کېدو له امله ستر تجارتي ارزښت او اهمیت لري.

د ننګرهار ځنګلونه: د ننګرهار ولایت ۳ زره هکتاره تجارتي ځنګل لري چې د کلني تولید ظرفیت یې یو سلو اویا زره متره مکعبه تجارتي لرګي وو. د ۱۳۵۷لمریز کال څخه دمخه یې د کلني پرېکولو ساحه پنځه سوه هکتاره ساحه وه.

## د لغمان ځنګلونه:

د لغمان ولایت د الیشنګ او الینګار درې چې تر نورستان پورې رسېږي، ځیني واړه واړه ځنګلونه لري. د دغو ځنګلونو مساحت ۲۸۷۹۹۸ هکتاره اټکل شوی دي چې زیاتره یې د نښتر، څېړۍ او ښوون په ونو پوښل شوی دي.

## د بادغیس ځنګلونه:

سره له دې چې د پستې ځنګلونه د یوې پټۍ په بڼه له بدخشان څخه تر هراته پورې اوږده غځېدلې دي، خو د بادغیس د پستې ځنګلونه له ټولو څخه زیات تجارتي اهمیت لري.

د بادغیس د پستې ځنګلونه په طبیعي توګه ۳۰۰۰ زره هکتاره ځمکه پوښلې ده چې د کلني تولید کچه یې له ۱۳۵۷لمریز کاله نه مخکې دوه زره ټنه ریوټ ورکړل شوی و.

ښایي د هېواد په ځینو نورو سیمو کې هم واړه واړه ځنګلونه موجود وي، خو د پورتنیو ځنګلونو په پرتله تجارتي ارزښت یې لږ دی.

**موخذونه:**


۱ــ د افغانستان فردا، د سیمینار د مقالو مجموعه، د افغانستان د جهاد ثقافتي شورا، ۱۲۷۲ لمریز کال.

۲ــ محیط زیست، د انجینر غلاف حضرت تالیف، لومړی چاپ، ۱۳۷۷لمریز کال.

## دولسم لوست

### (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | لوبې او روغتیا | |
| ۲ـ د زده کـــــــړې پـــــوهنیزې، مهـــــارتي اوذهنیتي موخې | ـ د لوبو په گټو پوهېدل،<br>ـ د روغتیا د ساتنې په برخه کې د لوبو په ارزښت پوهېدل،<br>ـ د سیمه ییزو لوبو په برخه کې معلومات ترلاسه کول،<br>ـ په نړیواله کچه د سپورت د لوبو د گټو په واسطه د هېواد نوم نـــورو تـــه وروپېژندل او پرې ویاړ ل،<br>ـ په ځانگړې او ټولنیزه توگه د لوبو په گټو پوهېدل او له بېلا بېلو لوبو سره د ځوانانو مینه پیداکول،<br>ـ په جملوکې د فعلونو د کار ولو وړتیا ترلاسه کول. | |
| ۳ـ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانگړی فعالیت | |
| ۴ـ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونې لارې اود ارزونې وسیلې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>په کتابچه یا جدول کې د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار د څـــارنې د پـــایلو لیکل. | |
| ٦ـ د زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه<br><br>-: د انگیزې رامنځته کول | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه | ٦ دقیقې |
| | ـ تاسې له کوم ډول لوبو سره مینه لرئ؟<br><br>ـ لوبې څه گټه لري؟ | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ــ په زده کوونکوباندې متن په چوپتیا سره لوستل او بیا په څو زده کوونکوباندې په لوړ غږ لوستل او د ټولګي څارل. | ــپه چوپه خوله د متن لوستل.<br>ــ په لوړ غږ دمتن لوستل. | ۳۵ دقیقې |
| ــ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیـــو اصلاح کول. | ــ د ښوونکي له لارښوونې سره سم دغلطیواصلاح کول . | |
| ــ د زده کوونکو په ډلو وېشل د فعالیت له مخې دنده ورکول او د هغوی څارل. | ــ د صنفي کار بشپړول اوپه ډله ییز کارکې ونډه اخیستل. | |
| ــ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښـــتنو ته ځواب ووایي. | ــ زده کوونکي ځواب ورکوي. | |
| ــ په زده کوونکو باندې فعلونه په جملـــو کـــې کارول. | ــ په جملوکې د فعلونوکارول. | |
| ــ د دریم فعالیت مطابق له زده کوونکو پوښتنې. | زده کوونکي ځواب ورکوي. | |
| ــ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټـــولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي. | – په شفاهي توګه دټولګي په مخکې دلوست دمفهوم څرګندونه. | |
| ــ په ډلو د زده کوونکو وېشل او له هرې ډ لـــې څخه په نړیوالو لوبو کې د افغاني لوبغاړو د بري په هکله پوښتنې. | – په ډله ییز فعالیت کې برخه اخیستل. | |
| ــ په زده کوونکو باندې ٦ فعالیت اجراء کـــړئ، خو تاسو څارنه وکړئ چې ټول پـــه کـــې برخـــه واخلي. | – د٦ فعالیت اجرا کول. | |
| ــ زده کوونکو ته دنده ورکـــړئ چـــې د پـــنځم فعالیت په هکله خبرې وکړي، ښوونکی دې ټـــول زده کوونکي په کې راشامل کړي. | ــ دپنځم فعالیت په اجراکولوکې برخه اخیستل.<br>ــد پوښتنو ځوابونه وایي | |
| ــ د لوست لنډیز دې ووایي.<br>ــ د ارزونې پوښتنې دې وکړي. | | |

د دریم فعالیت ځوابونه:

ــ لوبې او ورزش د بدني روزنې یوه برخه ده چې د وجود په سلامتیـ کې زیات رول لري، ځکه چې د بـــدن ټـــول

غړي په کې په حرکت کې راځي.
ـ د لوبو او ورزش ګټه بدن ته دا ده چې د بدن غړي په حرکت راځي. بدن يې خوله کېږي اوزهرجن مواد له وجود څخه خارجېږي او د بدن وړتيا  پياوړي او غټېږي، په لوبو او ورزش سره وجود قوي، پياوړی او روغ وي.
ـ په ټولنيز لحاظ يې ګټه دا ده چې لوبغاړي په اجتماعي روحيه روزل کېږي. له يو بل سره مينه پيدا کوي.

**۹ـ اضافي معلومات**

د وګړو د پرمختيا په برخه کې سيمه ييزې او نورې رسمي منل شوي لوبې ډېره اغېزه لري.
لوبې درې موخې لري، لومړی د جسمي روغتيا او د ناروغيو په وړاندې د مقاومت او درملنې په اړه ګټورې ګڼل کېږي، دويم د ټولو ټولنيزو، مدني او اخلاقي ارزښتونو د پراختيا په برخه کې ور مرسته کوي.
لومړی موخه د ټولنيز شخصيت دښه بنسټ لپاره وړ زمينه برابروي.
دريمه موخه په ټولو درسي مضمونونو پورې اړه لري، څرنګه چې لوبې د ډله ييز فعاليت مرکز جوړوي، له همدغه کبله د مفکورو او ټولنيزو وړتياوو په برخه کې مرسته کوي. په يوه لوبه کې ماشومان او ځوانان له يوه بله سره مخامخ کېږي خپله او د نورو دنده پېژني او ديو بل د فکر او مفکورو په برخه کې يې پوهه زياتېږي. د لوبو اصلي روحيه په خپله يوه ټولنيزه روحيه ده چې خوشحالتيا، خندا او له يو بل سره د ملګرتيا حس پياوړي کوي او د بشري اړيکو د پوهېدلو او درناوي لپاره لاره هوارووي.
په هر ډول لوبو کې د فعاليتونو ترمنځ يو دوه اړخيز ه همکاري شته چې د هغو بېلګه په عادي فعاليتونو کې نه ترسترګو کېږي. رهبري شوې لوبې د لوبغاړو ترمنځ د روا سيالۍ، ګډې مرستې او په ځان باندې د ډاډ اود نورو ددرناوۍ حس لازيات پياوړی کوي، د لوبو په مهال ماشومان او تنکي ځوانان خوشحاله له تعصب او کرکې څخه لېرې متجسس او احساساتي وي، څرنګه چې د لوبو پايلې او نتيجې ژر ترلاسه کوي، نو ځکه ماشومان دا ډول فعاليتونو او لوبو ته ډېره لېوالتيا ښکاره کوي.
دلته به د نړۍ د ځينو هېوادونو لوبې په لنډه توګه دروپېژنو.

هندبال:
عمر: ۱۰ ـ ۱۴ کلن
شمېر: څرګند نه وي، (دوه ګروپه)
ځای: د لوبو خونه، يا د لوبو ډګر
توکي: توپ (پنډوسکی)
د فعاليت بڼه: نيول، او اچول
موخه: د وړتيا زياتوالی.
ماشومان او تنکي ځوانان په دوو ډلو وېشل کېږي، توپ يو ماشوم ته ورکول کېږي او هغه دا توپ خپل يو بل لوبغاړي ته اچوي، هغه ټيم چې توپ يا پنډوسکی ترلاسه کوي هغه يې د خپل ټيم يو بل غړي ته ورکوي او د امکان تر پولې پورې هڅه کوي چې پنډوسکی له خپل ځان سره ډېره موده وساتي، خو مقابل لوری هڅه کوي چې ډېر ژر

پنډوسکی یا توپ د دوی له لاسه وکاږي، څرنګه چې پنډوسکی یو تن، بل تن ته غورځوي، نور لوبغاړي هم د چک چکو کولو په ډول خپل لاسونه پړکوي.

.

درې کسیزه پنډوسکی

عمر: ۱۴ _ ۱۷ کلن

شمېره: هر څومره چې وي

ځای: هوار میدان او ډګر

توکي: یو یو پنډوسکی د هر تن لپاره

د فعالیت ډول: فعاله نیول او توپ وهل.

ماشومان پر دریو مناسبو ډلو وېشل کېږي او هر یو ته د یو، دوو، او دریو شمېره ټاکل کېږي او د هرې ډلې لپاره یوه وړوکی دایره چې له ۱۸ څخه تر ۲۰ مترو پورې شعاع ولري د ځمکې پرمخ جوړېږي.
د لومړي شمېرې ټاکل شوی ماشوم په دایره کې دننه درېږي او دویمه او دریمه شمېره کسان د دایرې نــه بهــر د دایرې دننه ماشوم په وړاندې مخامخ درېږي او دواړه دویمه او دریمه شمېره لوبغاړي د پنډوسکې لوبه پیل کوي او دغه پنډوسکی د هغه ماشوم او لوبغاړي د پښو لور ته اچوي، په دایره کې دننه لوبغاړې هڅه کــوي چــې دغــه پنډوسکی یې په پښو ونه لګېږي، نو ځکه هڅه کوي چې لوړ ټوپ ووهي چې پنډوسکی یې په پښو نه لګېږي.
د دغې لوبې شرط دا دی هغه لوبغاړی چې پورته ټوپ او خیز وهي باید له دغې وړې دایرې څخه بهر نه شي. کــه چېرته یې پنډوسکی په پښو ولګېږي، نو دغه لوبغاړی خپل ځای یو بل ته پرېږدي او په دغه ډول سره هغه یوه نمره ترلاسه کوي، که چېرته د هغه پنډوسکی خطا شي د هغه یوه نمره کمېږي او په دایره کې دننه لوبغاړی دوه نمــرې ترلاسه کوي او په پایله کې هغه څوک چې زیاتې نمرې ترلاسه کړي، هغه د لوبې ګټونکی ګڼل کېږي.
لنډه دا چې لوبې د جسمي او روحي پیاوړتیا لپاره ډېرې اغېزمنې ګڼل کېږي، دا لوبې که سیمه یزې وي او یا هغــه لوبې وي چې نړیواله بڼه لري. همدا سیمه ییزې او وړې لوبې د خپل انکشاف او ودې له مخې په منل شوو لوبو هم اوښتي دي، په دغه لوست کې د اضافي معلوماتو په منظور د ځینو هېوادونو سیمه ییزې لوبې دروپېژندل شوې، که چېرته ښوونکی د خپل هېواد د دودیزو او سیمه ییزو لوبو په هکله نور معلومات لري کولای شي هغه زده کوونکو ته بیان کړي.

# دیارلسم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | ویکتور هوگو | |
| ۲_ د زده کــــــړې پوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې | _ د نړیوالو ادبي څېرو پېژندل.<br>_ د ویکتور هوګو او د هغه له ژوند او اثارو سره اشنا کېدل.<br>_ د مفرد او جمع په نوم پوهېدل او په جملو کې د هغو کارول.<br>_ د نومونو، صفتونو او فعلونو پېژندل. | |
| ۳_ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت. | |
| ۴_ د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم. | |
| ۵_ د ارزونې لارې اود ارزونې وسیلې | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦_ د زده کــــړې او تدریس فعالیتونه | فعالیت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه | ٦ دقیقې |
| ۷_ د انګیزې رامنځته کول | _ په نړیوالو شخصیتونو کې د چا له نوم سره بلد یاست؟<br>_ مورِ ته د نړۍ د ادبي نامتو څېرو پېژندل څه ګټه لري؟ | ۴ دقیقې |

| ۱ـ ۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ـ په ځوزده کوونکو متن ولولئ چې نور ورته غوږ ونیسي. | ـ د متن لوستلو ته غوږ ږدي او متن لولي. | ۳۵ دقیقې |
| ـ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیو اصلاح کول. | – زده کوونکي خپلې غلطۍ سموي. | |
| ـ په یوزده کوونکي په تخته لغتونه ولیکئ او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ـ زده کوونکي لغتونه لیکي او بیا یې ټولګیوالو ته وایي. | |
| ـ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې د هېواد د شخصیتونو نومونه ولیکي. | ـ دفعالیت بشپړول. | |
| ـ د مفرد او جمع نومونو، فعل او صفت په هکله پوښتنې وکړئ. | ـ ځواب ور کوي. | |
| ـ له زده کوونکو پوښتنې وکړئ چې دویم فعالیت ته ځوابونه ورکړي. | ـ ځواب ور کوي. | |
| ـ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي. | – زده کوونکي په خپلو خبروکې دلوست مفهوم وایي. | |
| ـ د زده کوونکو وېشل په ډلو او هرې ډلې ته د دریم فعالیت پوښتنې ورکول چې په مشوره یې ځواب کړي. | – په مشوره ځواب ور کوي. | |
| ـ یو زده کوونکی د څنګ زده کوونکي ته املاء وایي او هغه یې لیکي، ښوونکی دې ټول وڅاري چې په فعالیت کې برخه واخلي. | ـزده کوونکي فعالیت اجرا کوي اواملا لیکي. | |
| ـ د لوست لنډیز ورته وایي او تر هغه وروسته د ارزونې پوښتنې کوي او بیا کورنۍ دنده ورکوي. | ـ زده کوونکي پوښتنې کوي.<br>ـ په مشوره سره ځواب ورکوي. | |

۸ـ د متن ستونزمنوپوښتنو ته ځوابونه:

ـ ویکتور هوګو د خپل ادبي استعداد او له مطبوعاتو سره د مینې او د بینوایانو د ادبي شاهکار په لیکلو سره نړیوال شهرت ترلاسه کړ.

ـ ویکتور هوګو هغه وخت له ستونزو سره مخ شو چې د فرانس له واکمن ناپلیون سره مخالف شو، فرانسه یې پرېښوده، لومړی بلژیک اوبیا انګلستان ته لاړ.

ـ هغه وخت یې په ژوند کې بدلون رامنځته شو چې لور یې مړه شوه، نو بیا یې سیاست ته مخه وکړه.

ـ هوګو د یوه جنرال زوی و.

**۹_ اضافي معلومات او ماخذونه:**

ویکتور هوګو، د فرانسې مشهور شاعر، رومان لیکونکی او تکړه ننداره لیکونکی و. د بزانسون په ښار کې زېږېدلی. پلار یې جمهوري غوښتونکی او مور یې د سلطنتي نظام پلویتوب کاوه. د پلار او مور ترمنځ د رامنځته شویو ستونزو له کبله یې ډېرې ربړې ولیدې. ماشومتوب او ځواني یې د خپلو وروڼو او مور سره یو ځای په پاریس کې په خپل کور کې تېره کړه. د خپلې لویې باغچې خاطرات چې طبیعي او وحشي حالت یې ساتلی و، په خپلو اشعارو کې منعکس کړې دی. په ۱۸۱۱م. کال یې د خپلې مور په ملګرتیا مادرید ته سفر وکړ. هغوی تر ۱۸۱۳م. کال پورې په اسپانیا کې پاتې شول. دغه سفر د هوګو په ژوند کې نوی ذوق او قریحه راپیداکړه، خو د طبیعت له نرۍ څخه د درک ځواک یې په پاریس کې وده وکړه او استعداد یې ډېر ژر څرګند شو. په ۱۸۱۶م. کال چې څوارلس کلن و، په خپلو یادښتونو کې یې ولیکل:

((غواړم چې شاتو بریان و اوسم یا هېڅ)) هوګو تر دې وروسته د هغې ځانګړې مینې له کبله چې له شاعرۍ او لیکوالۍ سره یې لرله، لومړی یې د شعر د فنونو، زده کړې ته مخه کړه او په پرله پسې توګه د بیان، عروض او معانی علم او فن زده کړې ته یې دوام ورکړ. په اووه لس کلنۍ کې یې له خپلو وروڼو سره د (کنسرواتور لیتر Conservateur litteraire) په نامه مجله خپره کړه. په ۱۸۲۱م. کال د هوګو مور مړه شو ه. ۱۸۲۲م. کال د هوګو د ادبي او کورني ژوند حقیقي پیلامه ګڼل کېږي. هغه په شل کلنۍ کې د خپلو اشعارودیوان خپور کړ چې ډېر بریالیتوب یې ترلاسه کړ.

د ۱۸۵۱م. کال څخه تر ۱۸۷۵م. کال پورې د هوګو د تبعید دوره وه، همدغه تبعید د دې لامل شو چې هوګو د ځوانۍ په څېر زیات کار او فعالیت وکړي. هغه په خپله لیکي: ((زما تبعید او شړل ګټور و، له همدې کبله له خپل برخلیک څخه مننه کوم.)) هغه له سیاسي پلوه جمهوري غوښتونکی و او له ادبي پلوه د رومانتیزم د مکتب لاروی و.

کله چې په ۱۸۵۹م. کال د دریم ناپلیون داده د بخښنې فرمان رد کړ، د همدغه کار له کبله یې نړیوال شهرت او حیثیت ترلاسه کړ. د هوګو د ژوند دغه دوره د هغه د ژوند له ویاړه ډکه دوره ګڼل کېږي.

هوګو په هنر کې د خپلواکۍ پلویتوب کاوه، په خپلو شعرونو کې یې بېلا بېلې موضوعګانې منعکس کړي دي. د بېلا بېلو ادبي فورمونو له حماسي څخه تر هجو، له مرثیې څخه تر غزلې پورې فورمونه یې ډېر راوړلي دي.

د هوګو په شعرونو کې تضاد،لکه: شپې او ورځې، د رڼا او تور تم، د نېکۍ او بدۍ، د وجدان او بې وجدانۍ په شان مسایل خورا زیات لیدل کېږي. د هوګو په وړاندې خورا لویه مساله د بدۍ شتوالی دی چې دهغه له نظره د ټولنیزې بې عدالتۍ په بڼه څرګندېږي.

د ده په عقیده څه په ځانګړي ژوند او څه په تاریخ کې د دغې ناوړه پدیدې د له منځه وړلو لپاره باید هر څه وشي. پاریس د هغه د اتیا کلنۍ جشن په رسمي بڼه ولمانځه. هغه د ۱۸۸۵م. کال د می په میاشت کې مړ شوی، تابوت یې د پاریس د نصرت طاق لاندې د ملت د درناوي د اداء کولو لپاره ایښودل شوی و، تر هغه وروسته د پانتیون Pantheon په مړستون (هدیره) کې خاورو ته وسپارل شو.

رومانتیزم:

رومانتیزم د رومان له کلمې څخه اخیستل شوی چې لغوي معنا یې خیالي، افسانوي او عشقي ده او په ادبي

اصطلاح د یو ادبي مکتب نوم دی چې د اتلسمې میلادي پیړۍ په پای کې د کلاسیک ادبي مکتب په مخالفت پــه اروپا کې رامنځته شو. په ۱۹ مه پیړۍ کې د نړۍ په ډېرو هېوادونو کې خپور او د ادب او هنر په بېلا بېلو څانگو، په ځانگړې توگه انځورگرۍ (نقاشۍ) کې یې ډېره وده او پرمختگ وکړ.

ځانگړنې:

ـ د خیال او فکر ازادۍ او بې پروایي.

لوړ تخیل

ـ د ښکلا او جمال ستاینه.

ـ د لغاتو او ژبنیو تعبیرونو پراختیا.

ـ له ادبي قید او بند څخه ځان خلاصول او لکه چې د دې مکتب یو پیاوړي لاروي ویکتــور هوگــو بــه ویــل: ((روماتیزم یعنې د شرایطو له بې ځایه قیدونو څخه د ادبیاتو ازادي.))

د دې ادبي مکتب نومیالي استازې:

په فرانسې کې ویکتور هوگو، په انگلستان کې ویلیام شکسپیر، والتر سکاټ او شیلی.

په روسیه کې مخایل لرمانتوف، الکساندر پوشکین په ایټالیا کې، الکساندر مانزوني او په مجارستان کې شاندر پتوفی دی.

# څوارلسم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | د بشر حقونه | |
| ۲ـ د زده کـــــــړې پوهنيزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې | ـ د بشر د حقونو پېژندل.<br>ـ په ځانګړې توګه د ژوند کولو، ازادۍ، شخصي امنيت، روغتيا، د فکر او بيان،ازادۍاو د انساني کرامت د حق په برخه کې معلومات.<br>ـ د مفردو او مرکبو کلمو پېژندل.<br>ـ په جملو کې د مفردو او مرکبو جملو کارول. | |
| ۳ـ د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، ځانګړی فعاليت. | |
| ۴ـ د تدريس وسيلې او مرستندوی توکې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه، پنسل او قلم. | |
| ۵ـ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو اوډله ييز کار څارل او پايلې يې په کتابچه کې ليکل. | |
| ٦ـ د زده کـــــــړې اوتدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کـــار کتنه اودتير لوست ارزونه. | ٦ دقيقې |
| ۷ـ د انګيزې رامنځته کول | ـ تاسې بشري حقونه پېژنئ؟<br>ـ د نورو حق ته بايد څرنګه درناوی وکړو؟ | ۴ دقيقې |

| ۱_ ۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| _ د متن په لوستلو کې زده کوونکو ته لارښوونه او د هغو تشویق او هڅونه چې متن ته غوږ ونیسي. | _ د متن لوستلو ته غوږ نیول اوبیا په خپله دمتن لوستل. | ۳۵ دقیقې |
| _ زده کوونکي په ډلو وېشل چې پوښتنو ته ځواب ووايي. | – زده کوونکي په ډله ییز ډول پوښتنوته ځوابونه وايي. | |
| _ له زده کوونکو څخه د فعالیتونو مطابق ګرامري پوښتنې کول. | – زده کوونکي پوښتنوته ځواب ورکوي. | |
| _ دزده کوونکوهڅونه چې دټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووايي. | _ نور زده کوونکي ورته غوږ ږدي چې مفهوم واوري او بیا خبرې پرې وکړي. | |
| _ که وخت و په ډلو د زده کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د ورته فعالیت ورکول. | – زده کوونکي په ډله کې فعالیت سرته رسوي. | |
| _ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې له زده کوونکوسره مرسته. | _ زده کوونکي جملې بشپړوي. | |
| _ د لوست لنډیز ورته ویل او بیا د څو پوښتنو په کولو سره د زده کوونکو ارزونه | زده کوونکي پوښتنې ځوابوي. – لنډیزته غوږ نیول اوپوښتنوته ځوابونه ورکول. | |
| _ د کورنۍ دندې ورکول، ښوونکی کله کله د کتاب له کورنۍ دندې پرته بله دنده هم ورکوي. | – دکورنۍ دند ې بشپړول. | |

**۸_ د متن ستونزمنوپوښتنو ته ځوابونه:**

_ د اسلام دین بشرته دا حق ورکړی دی چې انساني توپیرونه یې له منځه وړي دي او بشري حقوق یې ثابت او په ورکړویې حکم کړی دی.

_ د بشر د حقونو په نړیواله اعلامیه کې چې ۳۰ مادې لري په هغه کې وايي چې انسان په ټولنه کې د ژوند کولو، زده کړې، ازادۍ او امنیت حق لري، هېڅوک باید شکنجه او ونه ځورول شي. هر انسان د خوړو، کالیو او نورو مدني حقونو حق لري.

د چا بشري حقونه تر پښو لاندې نشي او د چا حرکت او عمل د بل چا له عقیدې، ژبې، سمت او قوم سره په ټکر کې نه وي.

_ دولت مکلف دی چې د بشر د حقونو د ټولو مادو په پام کې نیولو سره په ټولنه کې د خپلو خلکو لپاره بشري حقونه ورکړي او زمینه ورته برابره کړي.

**۹_ اضافي معلومات:**

د بشر د حقونو ملي سازمانونه (ادارې)

د بشر د حقوقو ملي سازمانونه د بشر د حقوقو په فرهنګ کې یوه نوې او موډرنه اصطلاح ده چې داسې تعرفیږي:
هغه سازمانونه یا ادارې چې له اساسي ملي قوانینو سره سم د دولت له خوا جوړیږي او د فعالیت ډول یې په ځانګړي توګه د بشر د حقوقو د ترویج او ملاتړ په برخه کې وي. دغه سازمانونه د پاریس د نړیوال تړون په اساس د ۱۹۹۱م. کال په اکتوبر کې مطرح او وړاندیز شوې وو. دغه وړاندیز په ۱۹۹۳م. کال د ملګرو ملتونو د عمومي غونډې او بشر د حقوقو د کمیسیون د پاملرنې او تصویب وړ وګرځېد. د نوموړي پریکړه لیک لــه مخــې ملــي سازمانونه د هېواد په ملي قوانینو کې په پراخو اختیاراتو سره د بشر له حقونو څخه د ملاتړ او ترویج لپاره رامنځته کړل. د کړنو خپلواکي د دغو سازمانونو له مهمو ځانګړنو څخه ګڼل کېږي:
ـ د بشر د حقونو د نورمونو له نظره د اداري او قانوني مقرراتو د ښه والي لپاره دولت ته د طرحو، وړاندیزونو او رپوټونو وړاندې کول.
ـ د بشر د حقونو له نړیوالو قوانینو سره ملي قوانینو ته د سمون ورکولو د لارو چارو برابرول.
په دې برخه کې کولای شو چې د بشر د حقونو د ملي سازمانونو له نقش څخه د دولت د هڅوونکي په توګه، پــه ځانګړې توګه د دولت تقنیني سیستم د بشر د حقونو له نړیوالو کنوانسیونونو او نورو معتبرو اسنادو سره په یو ځای کېدو او د منل شویو نړیوالو نورمونو پربنسټ د ملي قوانینو، تصویبولو یادونه وکړو.
ـ د بشر د حقونو د نړیوالو څارونکو مراجعو سره د بشر د حقونو حالت په اړه د رپوټونو په برابرولو کې مرسته.
ـ د بشر د حقونو د زده کړو پروګرامونو تنظیم او سرته رسول.
ـ د بشر د حقونو د نقش په اړه د خلکو د شکایتونو څېړل او د دغو ډول پیښو او معضلو د حل او فــصل کولــو لپاره هلې ځلې.
ـ د ملګرو ملتونو او نور ممثلو سازمانونو سره مرسته او همکاري او د هغو له نړیوالو تجربو څخه ګټه اخیستل.

**مدني ازادي** Civil Liberty:
د مدني ازادۍ اصطلاح د بشر د حقوقو په فرهنګ کې له مدني حقوقو سره مترادفه ګڼل شوې او پېژندل شوې ده. د حقوقو پېژندونکو په عقیده مدني ازادي د بشر د حقوقو جوهر تشکیلوي. مدني ازادي د ټولنې د وګړو د فــردي ازادۍ په مفهوم ده چې له بستیزو حقوقو څخه یې د استفادې کول تضمینوي. د وګړو دغه بنستیز حقونه هماغه د هغوی د بیان د ازادۍ حق، د وجدان او عقېدې ازادي، د رای د ورکولو حق او په ټولنه کې د سیاسي ګډون حــق دی.

## سیاسي ازادي او حقوق:
په سیاسي ازادیو او حقوقو کې په ټولټاکنو کې د ګډون حق، دولتي پوستونو کې د استخدام او دندې ترلاسه کولو حق، محکمو ته د لاس رسی حق، د حکومت په اداره کې د خلکو د ګډون حق شامل دي او له فردي حقوقو څخه منظور هغه ازادي ده چې انسانان په دې برلاسي کول چې په ټولنه کې خپل ځانګړی برخلیک په خپلواکه توګه پــه لاس کې ونیسي.
سیاسي او مدني ازادي او حقوق یو د بل بشپړونکي دي. پوهان په دې باور او عقیده دي چې د لازمو سیاســي او

مدني ازاديو لرل د دموکراسۍ په لورې د حکومت د قانون او فعالې مدني ټولنې په لورې د تللو لارې چارې ګڼل کېږي.
د دغو دوو ازاديو پيوند او ګډون د دولت د محدوديت سبب ګرځي.
دغه پيوند د دولسمې پېړۍ محصول دی، سياسي ازادي په دې معنا ده چې په ټولنه کې به زور واکي نه وي، اداره او حکومت په قانون پورې مقيد وي او د دولت څواک د قانون په واک کې وي.

## د ښځو حقونه:

د ښځو حقونه د بشر د حقونو ډېرې مهمې او سترې برخې ګڼل کېږي. د ښځو په وړاندې د هر ډول تبعيض د لـــه منځه وړلولپاره د نړيوال تړون، غړي هېوادونه مؤظف دي چې ټول علمي امکانات په ټولنه کې د ښځو او نرو ترمنځ ټول منل شوي اصول رعايت کړي. له دې تړون سره سم ښځې له نارينه وو سره په سياسي، ټولنيزو او اقتـــصادي فعاليتونو کې د ګډون برابر حقونه لري. بشر د نړيوالو حقونو په ډګر کې د يو مطرح شوي پديدې په توګه په ټولنه کې د ښځو په دريځ ټينګار کړی دی او د بشر د حقونو پوهانو د نړۍ په بېلا بېلو برخو کې د ښځو پـــه وړانـــدې جنسي تبعيض ارزيابي کړی او هغه يې د بشر له حقونو څخه د سر غړونو د يو بحث راپارونکي مسالې په توګه ګڼلی دی.
هغوی په خپلو څېړنو او تحقيقاتو کې د ښځود حقونو په برخه کې دا لاندې مواد په ګوته کړي او د نړيوالې ټولنې پام يې وراړولی دی.
ـ په ټولنه کې د مدني حقونو او ازاديو سره په پيوند کې د برابرو حقونو لرل:
په ټولنه کې مدني حقونه او ازادي د ښځو لپاره د شخصي او مدني امنيت لارې چارې برابروي. مدني ازادي د دې وخت ورکوي چې ښځې په ټولنه کې هر ډول شکنجو، انساني ضد ناوړه روحي او ظالمانه سلوک او کړو وړو پرته ژوند وکړي او له لومړنيو حقونو او ازاديو، لکه: د ازادۍ حق، د امنيت لرلو، له تيري او په خپل سر نيولو او بندي کولو څخه ازادي. په کورني ژوند کې ازادي، د ملکيت ازادي او استوګنځي مصونيت، له دښمنيو څخه مصونيت، د معلوماتو ازادي. د کسب او کار ازادي څخه برخمنې وي.
له بلې خوا د ښځو لپاره په ازادۍ او مدني حقونو کې د فکر ازادي، د زده کړې ازادي، هنري ازادي، د مطبوعاتو ازادي، د غونډو او ټولنو جوړولو ازادي او نور شامل دي.

# پنځلسم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ــ د لوست موضوع | ابن سینا بلخي | |
| ۲ــ د زده کــــړې پــــوهنیزې، مهــــارتي اوهنیتي موخې | ــ د نړیوالو ادبي څیرو پېژندل،<br>ــ د ملي څیرو پېژندل یا د ابن سینا د ژوند، زوکړې او زده کــړې پــه اړه معلومات ترلاسه کول،<br>ــ د خاصو نومونو او صفتونو په برخه کې معلومات ترلاسه کول،<br>ــ په ځانګړې توګه په جملو کې د خاص نوم او صفت په کارولو پوهېدل. | |
| ۳ــ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴ــ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ــ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د یادښت په کتابچه یا په یو جدول کــې د زده کوونکــو لوستل، لیکل، او د ګروپي کار د څرنګوالی یادداشت کول. | |
| ۶ــ د زده کــــړې او تدریس فعالیتونه: | دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه او دتیر لوست ارزیابي. | ۶ دقیقې |
| ۷ــ د انګیزې رامنځته کول: | ــ زمونږ د هېواد کوم نامتو شخصیت ملي او نړیوال شهرت لري؟ــ<br>ــ د ملي نامتو څیرو پېژندل څه ګټه لري؟ | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| _ زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې په خپله خوښه یو یو پراګراف ولولي. | _ زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي،دمتن یو یوپراګراف لولي. | ۳۵ دقیقې |
| _ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیو اصلاح کول. | _ نور زده کوونکي غوږ نیسي چې د کلمو تلفظ او د جملو ترکیب زده کړي. | |
| _ په یو زده کوونکي بل ته املاء ووایئ. | _ زده کوونکي دې خپله املاء د کتاب له مخې اصلاح کړي. | |
| _ زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې ګرامري پوښتنې، لکه: نومونه او صفتونه په متن کې پیدا او له مثالونو سره یې ووایي. | _ زده کوونکي صفتونه او نومونه په متن کې پیدا کوي او هغه له مثالونو سره وایي. | |
| _ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي. | – څو زده کوونکي د ټولګي په مخ کې دمتن مفهوم په خپلوخبروکې وایي. | |
| _ د زده کوونکو ویشل په ډلو او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل. | – زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي. | |
| _ د جملو په بشپړولو کې د زده کوونکو لارښوونه او د تمرینونو په حلولو کې ورسره مرسته کول. | – زده کوونکي جملې پوره کوي اودلوست دتمرینونو په حلولوکې برخه اخلي. | |
| – ښوونکی زده کوونکوته کورنۍ دنده ورکوي. | – زده کوونکي کورنۍ دنده اخلي اوپه کورکې یې بشپړوي. | |

۸_ د متن ستونزمنوپوښتنو ته ځوابونه:

_ ابن سینا تر لس کلنۍ پورې د وخت دودیز دیني علوم زده کړل.

_ ابن سینا مشهور اثار الشفا او القانون نومېږي.

_ نوح بن منصور ساساني ابن سیناته اجازه ور کړه چې له شاهي کتابتون څخه استفاده وکړي،

_ د ابن سینا اثار د نړۍ په ځینو پوهنتونونو او تعلیمي مرکزونو کې لوستل کېږي.

د څلورم فعالیت ځواب:

زه کار کوم (حال فعل)

ته به درس ولولې (مستقبل)

تا لیک لیکلی دی (ماضي)

**۹_ اضافي معلومات**:

ابن سینا د خپل ژوند لیک په اړه په خپله لیکي چې د بلخي پلار او بخارایي مور څخه یې نړۍ ته سترګې غړولـــي دي. د علم د ترلاسه کولو په اړه یې د خپل وخت له پوهانو څه زده کړې ترلاسه کړې او د طب، فلسفې، منطق او.. په برخه کې یې ډېر ګټور اثار رامنځته کړي دي.

د علامه اقبال د وینا له مخې چې وایي: یوازینی څوک و چې د خپلواک فکري نظام د تنظیم لپاره یې هڅه پیل کړه او پـــه دغه برخه کې یې د فلسفة الشرقیه یا حکمة المشرقیه کتاب تألیف کړ.))

د تاریخي اسنادو له مخې څرګندېږي چې ابن سینا د خپل دولت د کمزورتیا له کبله له یو ښار نه بل ښار او له یوې ســـیمې نه بلې سیمې ته لېږدېده. هغه هڅه کوله چې یو داسې دولت او دربار ته ورسېږي چې نسبتاً باثباته او پایـــښت ولـــري او د خپل عمر تر اخر پورې هلته استوګنه غوره کړي، خو دغه ارمان او هیله یې له ځان سره قبر ته یووړه. دا ځکـــه چـــې د ده دژوند مهال یو داسې مهال و چې هلته د ځواک بېلا بېل مرکزونه، مذهبي تاوتریخوالی، د فکري او فلسفي مکتبونو تـــرمنځ تضاد، د کلیوالو او ښاریانو ترمنځ تضادونه، او په پایله کې د ځورېدونکو او تر ظلم لاندې قشرونو ترمنځ په ټولنـــه کـــې ناخوالې موجودې وې.

ابن سینا په خپل اته پنځوس کلن سرګردانه ژوند کې په خپل چاپېریال کې د ډېرو تاریخي پېښو شاهد و. په همدغـــه دوره کې د سامانیانو د واک کمپله ټوله او غزنویان په غزني کې د واک پر ګدۍ کښېناستل او د سلطان محمـــود تـــر مـــشرۍ لاندې د هغوی د واکمنۍ سیمه ورځ په ورځ پراخېدله.

هغه چې د غزنویانو ورځ په ورځ زیاتېدونکی ځواک په سترګو لیده، لکه څنګه چې د سامانیانو د دولت له زوال څخه یې ډار درلود. د غزنوي واکمنو له ځواکمندۍ څخه هم ډارېده.

همدغه ډار و چې هغه د خپلې استوګنې لپاره کله بخارا، او ځینې وختونه یې په ری او اصفهان کې استوګنه کوله. د دغـــه سرګردانه ژوند په لړلو سره ابن سینا داسې اثار تألیف کړل چې تر اوسه له اهمیت څخه ډک دي.

د ابن سینا د ژوند لیکونکو او مؤرخانو له لیکنو څخه څرګندېږي چې ابن سینا هر اثر چې د علومو په بېلا بېلو برخو کـــې لیکلی دی. په واقعیت کې یې د خپلوهېوادوالو غوښتنو ته ځواب ویلی دی.

څېړونکو د ابن سینا د اثارو له  څېړنې وروسته ثابته کړې چې هغه د افلاطون فلسفې د حکماوو له ډلې څخه دی او زیاتوي چې ابن سینا په شرق کې یوازینی عالم دی چې فکري خپلواک نظام یې درلود او همدغه فکري خپلواک نظام د دې لامـــل شو چې د هغه د محبوبیت کچه لا لوړه کړي.

د هغه اندیښې او فکر تر پېړیو پېړیو پورې د نورو هېوادونو په فکري مکتبونو باندې اغېزه لرله.

ابن سینا له دغو ستونزو سره سره یو زیات شمېر اثار د طب او حکمت په برخه کې تالیف کړل چې د نړۍ په بېلا بېلو ژبو ژباړل شوي او تر اوسه د بشري ټولنې د ګټې اخیستلو وړ دي.

د ابن سینا د ځینو اثارو نومونه دا دي:

_ الاشارات و التنبیهات.

_ اقسام العلوم العقلیه.

_ پنځه رسالې.

_ د شفا روانشناسي ژباړه.

_ علایي دانش نامه.

_ د حکمت لارښوونه.

ـ د ابن سینا دیوان،
ـ درک پېژندنې رساله،
ـ د ابن سینا برخلیک،
ـ ظفر نامه،
ـ علم الاخلاق،
ـ القا نون،
ـ قراضه طبعیات،
ـ مبداء او معاد،
ـ معراج نامه،
ـ د ابن سینا له نظره د ناروغیو د تشخیص قاعده.

همدارنګه د ابن سینا د ژوند او د هغه د اثارو د څېړنې او تحلیل په اړه په افغانستان، ایران، ترکیه او ځینو نـــورو هېوادونو کې خورا زیات اثار او علمي تحلیلي مقالې چاپ شوې دي.

ری د ایران په تهران کې یوه پراخه تاریخي سیمه ده.

# شپاړسم لوست

( د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه )

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
| --- | --- | --- |
| ۱ــ د لوست موضوع | د کابل بالاحصار | |
| ۲ــ د زده کـــــړې پوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې | ــ د هېواد له لرغونو اثارو سره اشنايي.<br>ــ د کابل بالاحصار پېژندنه.<br>ــ د خپل هېواد له فرهنګ سره د مینې لپاره هڅه.<br>ــ د زمانې په لحاظ د فعل له ډولونو سره اشنايي. | |
| ۳ــ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت. | |
| ۴ــ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم. | |
| ۵ــ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار مشاهده او د څارنې پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ۶ــد زده کـــــړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه اودتیرلوست ارزونه. | ۶ دقیقې |
| ۷ــ د انګیزې رامنځته کول: | ــ ایا تر اوسه مو په خپلو سیمو او خپل هېواد کې لرغوني اثار لیدلي؟<br>ــ د لرغونو ودانیو او اثارو پېژندل څه ګټه لري؟ | ۴ دقیقې |

| ۱ـ ۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ـ په زده کوونکو یو یو پراګراف ولولئ.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیـــو اصلاح کول.<br>ـ په زده کوونکو د داسې جملو لیکل چې له متن سره تړاو ولري.<br>ـ په زده کوونکو باندې دویم فعالیت اجراء کول.<br>ـ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټـــولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي.<br>ـ د زده کوونکو وېشل په ډلو او هرې ډلې تـــه د کتاب د فعالیتونو له مخې د فعالیت ټاکل.<br>ـ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې د زده کوونکو لارښوونه او مرسته کول.<br>ـ په زده کوونکو باندې د څلورم فعالیت ســـرته رسول.<br>− ښوونکی کورنۍ دنده ورکوي. | ـ زده کوونکي د پراګراف لوستلو ته پـــه ســـمه توګه غوږ نیسي اوپه خپله یې هم لولي.<br>− زده کوونکي خپلې غلطۍ اصلاح کوي.<br>ـ زده کوونکي جملې لیکي.<br>ـ زده کوونکي فعالیت سرته رسوي.<br>− زده کوونکي دمتن مفهوم پـــه خپلـــوخبروکې څرګندوي.<br>− زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې ونډه اخلي.<br>− زده کوونکي دښوونکي په مرسته جملې پوره کوي اوهم تمرینونه حلوي.<br>− زده کوونکي څلورم فعالیت سرته رسوي<br>− زده کوونکي کورنۍ دنده یادداشت کوي او په کورکې یې بشپړوي. | ۳۵ دقیقې |

۸ـ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

دلوست څلورم فعالیت د کتاب د متن له مخې بشپړېږي.

د پنځم فعالیت ځواب :

ـ بالا حصارونه د پوځي او سیاسي موخو په خاطر جوړ شوي چې د تېري کوونکو په وړاندې یې دفاع کوله.

ـ اوس د بالاحصارونو ارزښت دا دی چې ټول لرغوني شمتني ده،باید وساتل شي او تل ترمیم شي.

ـ که د بالاحصارونو ساتنه ونه شي، ورانېږي او دغه تاریخي شتمني له منځه ځي.

**۹_ اضافي معلومات**:
د کابل ښار په سهيلي برخه کې يوه جنګي کلا ده چې د يوې ډېرينې غونډۍ په ځګه او هواره سطحه باندې پرته ده. په تاريخ کې دا کلا د کابل د بالاحصار په نوم شهرت لري. په پخوانيو زمانو کې بالاحصار د پنډو او لويو ديوالونو درلودونکی و چې له تېرو څخه جوړ شوی و، دغې کلا ته دکابل (کهندژ) يا زړه کلا ويل کېدله.
لکه چې ويل کېږي کابل هم د هېواد د نورو ولايتونو د لويو ښارونو غونډې يو کهندژ درلـــود چـــې لـــه هماغـــه بالاحصار څخه عبارت دی يعنې ځګه کلا او يا ځګ ديوال. په ټولو پخوانيو ماخذونو کې که عربي دي، که فارسي، په حصاريا دژ سره يې ياده کړې ده . د کلا د ديوالونو دباندې لمنه يې پراخه ده، د دې کلا موقعيـــت همداســـې مشهور دی چې د کابل د اسمايي غره ديوال په ختيځه برخه کې چې د بالاحصار په لويديځه ګرد نه ختمېږي او ترې لاندې يوه هديره ده، د غونډۍ په دې ځګې برخې کې دا کهندژ ليدل کېږي او د کابل له بالاحصار څخه په تاريخي اسنادو کې په لاندې ډول يادونې شوي دي.
حدودالعالم هغه داسې معرفي کوي.
کابل شهريست و اورا حصاريست محکم و معروف، باستواري او اندروی مسلمانان و هنـــدو انـــد، و انـــدر وی بتخانه...له پورتنۍ ليکنې څخه څرګندېږي چې په دې پخه کلا کې نه يوازې مسلمانانو اســـتوګنه درلـــوده بلکـــې هندوان هم په کې اوسېدل او هغوی بتخانه هم لرله.
که څه هم په تاريخونو کې د کابل له کهندژ څخه د کابل د بالاحصار په نوم يادونې شوي دي، خو په حقيقت کې دا بالاحصار يو بالاحصار (ځګه کلا) نه بلکې دوه بالاحصارونه دي.
يو برنی بالاحصار دی چې د هماغه کهندژ څخه عبارت دی چې د بيني حصار په لور او په جنوبي برخه کې پروت دی.
او بل کوز بالاحصار دی چې د برني بالاحصار څخه راښکته د نوموړې غونډۍ په هواره لمنه کې بيا د ښار ودانۍ پکې شاملې وې.
د کابل د بالاحصار د جوړېدلو په اړه بېلا بېل نظرونه شته. په يو روايت کې په دغه برخه کې داسې يادونه شوې ده، د کابل ښار يعنې دا بالاحصار په ۷۷۰م. کال د الثور سلمان پاچا له خوا يې بنسټ ايښودل شـــوی دی لـــومړنی اوسيدونکي يې څوک وو؟
په دې اړه د افغانستان په تاريخي جغرافيه کې داسې اشاره شوې ده:
د کابل کلا (بالاحصار) د لومړي ځل لپاره د ترکيې پاچاهانو استوګنځی و او وروسته برهمنانو هلته استوګنه غوره کړه.
د بالاحصار د جوړېدو تاريخ د کابل له ديوالونو څخه دمخه دی يعنې دا په هغې زمانې پورې اړه لري چې د اســـلام سپېڅلی دين لا دې سيمې ته نه و رارسېدلی، لکه چې وايي د دې ديوال له جوړېدو څخه دمخه کابل يو کوچنی کلی و، خو ديوالونو ورته خاص مرکزيت او تاريخي اهميت ورکړ.
بالاحصارونو په حقيقت کې د يو ښار ګوټي حيثيت درلود. په بالاحصار کې يو شمېر ودانۍ وې، لکه: د بالاحصار د شمالي لمنې په هواره برخه کې يعنې په کوزني بالاحصار کې د بالاحصار پخوانی وړوکی ښار ودان و او له دې ځايه

څخه جوتېږي چې دلته د بالاحصار ارګ، سلطنتي مقر، د حکامو او امراوو لپاره داستوګنې محلونه د نغدو او قميتي شيانو د ايښودلو اوساتلو لپاره ځانګړې ځايونه موجود وو.
د بالاحصار ښار د مامورينو، منصبدارانو او وګړو دکورونو ځای، د ماڼيو، بازارونو او حمـــامونو درلـــودونکی و.
بالاحصار، لکه:چې د سدوزيو د کورنۍ په عصر کې (۱۷۴۸م. او ۱۸۴۲م.) په خپله ښه موجود و. د هغه مبدا د مغولو عصر ته رسېږي او دا د بالاحصار د جوړولو لومړنۍ دوره ده. يعنې د ۱۵ ميلادي پېړۍ او تر هغې وروسته د سدوزيانو او په تېره بيا د تيمور شاه د واکمنۍ دوره (۱۷۷۳م. ـ ۱۷۹۳م.) چې د بالاحصار پادشاهي ماڼۍ او د هغې مربوط تعميرونه د ښکتني بالاحصار په ښکتنۍ برخه کې د مغولو د ساختماني سبک په شان جوړ شول او په دې وخت کې پاسنی بالاحصار هم موجود و.
د تاريخي واقعيتونو له مخې د وخت واکمنانو د بالاحصار د ودانۍ د سالمې پاتې کېدو په ترميم کې خاصه پاملرنـــه کړې ده.
دبالاحصار په اړه فورستر ليکي:
بالاحصار د کابل له سترو کلاګانو څخه ګڼل کېږي چې د فورستر په سفرنامه کې د هغه نوم (بالاسر) راغلـــی دی چې موخه ترې همدغه بالاحصار دی. دويمه کلمه (سر) دی چې حصار ورڅخه مطلب دی. د ارګ او کلا په معنا. په ۱۸۴۰م. کال کې بالاحصار د کابل ښار يو څلورمه ګڼل کېدو چې ديوال يې بېلا بېل برجونه درلودل. يـــوازې دوه دروازې يې پرانيستې وي. له لويديځې دروازې څخه يې د ښار لور ته دروازه درلوده او مشرقي دروازې ته يې د پېښور دروازه ويله او دغه دواړه دروازې به د شپې په مهال تړل کېدې او د کلا ګردچاپېره وچ خندق کيندل شوی و. پخوا حکومتي زندان او بنديخانه وه، له دغه ځايه ټول کابل ليدل کېږي. د بالاحصار يوه برخه د غره مخروطي برخه کې واقع ده. که څه هم ځينې ديوالونه يې ړنګ دي، خو له پاتې نښو څخه يې څرګندېږي چې ډېره محکمـــه کلا وه.
امير دوست محمد خان د دغې کلا د استکام او ټينګښت لپاره کار وکړ.

**مأخذونه:**


۱ـ پوهاند رازقي نړيوال، د هېواد لرغوني ښارونه او د تاريخ پاڼې، لومړی ټوک، ۱۳۸۵لمريـــز کـــال، ميونـــد خپرندويه مؤسسه، کابل.
۲ـ محمد ابراهيم عطايي، د کابل پر تاريخي جغرافيه تقريظ، د افغانستان د علومـــو اکـــاډمي، دولتـــي مطبعـــه، ۱۳۴۶لمريز کال، کابل.
۳ـ د افغانستان تاريخي جغرافيه، د پوهاند عبدالحی حبيبي تاليف، ۱۳۷۸لمريز کال، پېښور چاپ.

# اوولسم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | بي بي زینب ا دیبه اوباتدبیره میرمن، | |
| ۲_ د زده کــــــړې پوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې | _ د هېواد د ادبیاتو له تاریخ سره اشنایي،<br>_ د بي بي زینب پېژندنه،<br>_ له ګرامر سره بلدتیا د ((ی))د ډولونو پېژندل. | |
| ۳_ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴_ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵_ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار مشاهده او د څارنې پــایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د زده کــړې او تــدریس فعالیتونــه، حاضری اخیستل، د کورني کار کتنه اودتیر لوست ارزیابي، | ٦ دقیقې |
| ٦_ د انګیــــــــزې رامنځته کول | _ د هېواد په پخوانیو نومیالیو مېرمنو کې د چا له نوم سره بلد یاست؟ | ۴ دقیقې |

| ۱_ ۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ــ ښوونکی دې په زده کوونکو یو ځل لوست پــه چوپه خوله ولولي او بیا دې په زده کوونکو یو یو پراګراف په خپله خوښه ولولي.<br>ــ ځینې زده کوونکي دې راوبلل شي چې د مــتن په مفهوم خبرې وکړي.<br>ــ له یو څو زده کوونکو څخه د کتــاب دریــم فعالیت په مطابق پوښتنې وکــړئ چــې ځوابونــه ورکړي.<br>ــ په متن کې دې زده کوونکي خــاص نومونــه راوباسي او په جملو کې دې په کاروي.<br>ــ په زده کوونکو داسې جملې ولیکئ چې د (ی) ډولونه په کې راشي.<br>ــ په زده کوونو باندې په فعالیتونو کــې دشــپږم فعالیت خالي جملې ډکې کړئ.<br>ــ د لوستلو او فعالیتونو په بهیر کې که اړتیا وه د هغوی ستونزې ورحل کړئ.<br>ــ د لوست لنډیز ورته ووایئ او د ارزونې لپــاره ترې پوښتنې وکړئ.<br>ــ که وخت و څو نور ورته فعالیتونه اجراء کړئ او په پای کې کورنۍ دنده ورکړئ. | ــ زده کوونکي متن په چوپه خوله لولي ،بیا څوتنه زده کوونکي یویوپراګراف په لوړ غږ لولي اونور ورته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي دلوست په مفهوم خبرې کوي<br>ــ زده کوونکي ځوابونه ورکوي.<br>ــ زده کوونکي خاص نومونه لیکي او هغــه پــه جملو کې کاروي .<br>ــ زده کوونکي په خپلو کتابچوکې داسې جملــې لیکي چې په هغه کې د(ی) ډولونه وکاروي.<br>ــ خالي ځایونه په خپلو کتابچو کې پــه مناســبو کلمو ډکوي.<br>ــ زده کوونکي دې ښوونکي ته خپلې ســتونزې و وایي.<br>ــ ښوونکي ته غوږ نیسي او پوښتنو تــه ځــواب وایي.<br>ــ کورنۍ دنده په کور کې سرته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

۸ــ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

د دریم فعالیت ځواب:

ــ مېرمن زینب د میرویس نیکه لور وه.

ــ له خپل ورور شاه حسین هوتک سره یې د حکومت د چارو په سمبالښت کې کار کاوه.

ــ د مېرمن زینب په اړه معلومات موږ ته د پټې خزانې له کتاب څخه لاسته راغلي دي.

د متن شپږم فعالیت د متن له مخې بشپړېږي.

**۹_ اضافي معلومات**:

بي بي زينب:

دا عالمه او فاضله مېرمن د حاجي ميرويس خان نيکه لور وه. په وړکتوب کې يې د خپل پلار تر لارښوونې لاندې د هوتکو د عصر لوی عالم او د حاجي ميرويس نيکه د کورنۍ له استاد ملانور محمد غلجي څخه د قران کـــريم او اسلامي فقې او فارسي کتابونه ولوستل. د کتابونو له مطالعې سره يې شوق درلود او د شاعرانو ديوانونه يې کتل.

پخپله يې هم شعرونه ويل، دا بي بي ډېره هوښياره او د مملکت دارۍ په اصولو پوهه ښځه وه، پټې خزانې له روايت سره سم يې له خپل ورور شاه حسين هوتک سره د پاچاهۍ په چارو او د ستونزو په حل کې مرسته کوله او پاچا يې خبرو ته يې غوږ نيوه، کله چې پر قندهار باندې د نادر افشار لښکرې راتوی شولې، دغې مېرمنې له خپل توريـــالي ورور سره د جنګياليو پر څنګ تورې وهلې او کله چې بيا پښتنو مشرانو له يو کال کلابندۍ وروسته شاه حـــسين هوتک ته د دغه تاريخي ښار د تسليمولو مشوره ورکړه، نو نوموړې پاچا د زياترو تاريخي کتابونو په متفق روايـــت سره د خپلې همدغې خور په لاس مهر کړی قران مجيد او د اوربند او متارکې پيغام د نادر افشار قواوو ته ورساوه چې دا په خپله په سياسي چارو کې د مېرمن زينب د بشپړ لاس لرلو څرګند ثبوت دی.

د شاه محمود هوتک مېرمن، او د ده د حرم نورې ښځې او ماشومان چې له نادر سره بنديان وو، د اسحق سلطان او ملا زعفران تره کې په منځګړتوب د دوو ښځو په تبادله کې خوشې شول.

په دغه ډله کې د شاه محمود دوه زامن شهزاده ابراهيم او اسماعيل او نورې ديارلس تنه ښځې شاملې وې. په دوی کې د زينب بي بي نوم هېڅ تاريخ نه دی راوړی او د هوتکو له دې نارې څخه ښکاري چې د شاه اشرف او نـــادر دجګړو پر وخت بي بي زينب په کندهار کې وه او د خپلو وريروسره وه،د شاه محمود هوتک دتابوت په رسېدلو سره يې ځان د ملازعفران تر احسان لاندې بللی دی، ناره داسې ده:

د زعفران احسان مې زړه ده وروره وړی

يو مې يې راوستل وريرونه بل يې دی د شاه محمود تابوت راوړی

له بلې خوا موږ ته څرګنده ده چې د هوتکو په واکمنه کورنۍ کې د مير عبدالعزيز تر وژل کېدو وروسته کـــورنۍ بدې روانه وه او د هغې په پايله کې شاه محمود هوتک د مير عبدالعزيز د زوی شاه اشرف هوتک پـــه لاس ووژل شو. دې پېښې د شاه حسين هوتک او شاه اشرف هوتک ترمنځ دښمني دومره سخته کړه چې د شاه حسين هوتک له خوا اشرف ته په ډېره بده ورځ کې هېڅ راز مرسته ونه لېږل شوه او د اصفهان تخت د پښتنو له لاسه ووت.

بي بي زينبې د خپل ورور شاه محمود هوتک په مړينه يوه ويرنه ويلې ده چې متن يې د لوست په درسي کتاب کـــې راغلی دی: ږغ سو چې ورور تېر له دنيا سونا

کندهار واړه په ژړا سونا

د بي بي د مرګ او ژوند پته ورکه ده. د کندهار په زاړه ښار کې د سرپوزي د غره پر سر يوه کلا شته چې د زينب کلا نومېږي او د دغې عالمې او توريالۍ پښتنې ياد راتازه کوي.

**ماخذونه:**

**۱ــ سل پګړۍ یو پوړنی، د هوتکو ملي، روحاني، علمي، ادبي او څرنیزې څېرې، لیکوال محمد معصوم هوتــک، ۱۳۸۳ لمریز کال، د دانش خپرندویه ټولنه، پېښور.**

**۲ــ محمد ولي ځلمی، د کندهار مشاهیر، دویم چاپ.**

**۳ــ پټه خزانه، د محمد هوتک اثر، د اطلاعاتو او کلتور وزارت له خوا، ۱۳۵۴لمریز کال، کابل دولتي مطبه.**

# اتلسم لوست

**(د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | کتاب او کتابتون | |
| ۲ـ د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | ـ د کتاب او مطالعې له لارې د خپلې پوهې د کچې لوړول،<br>ـ د مطالعې د ځای او د مطالعې له وسیلې سره اشنایي،<br>ـ زده کوونکي دې ته هڅول چې مطالعه وکړي او کتابونه ولولي،<br>ـ د ترکیبي کلمو له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| ۳ـ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴ـ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه اوتیر لوست ارزونه | ٦ دقیقې |
| ۱-۷ د انګیزې رامنځته کول | ـ تاسو د ښوونځي له کتابونو نه پرته نور کتابونه مطالعه کړي دي او که مو مطالعه کړي وي، چیرې او د چا کتابونه وو؟<br>ـ څوک له کتابونو او مطالعې سره مینه لري،ولې ؟ | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| _ په یو شمېر زده کوونکو یو یو پراګراف ولولئ او نور زده کوونکي دې غوږ ونيسي.<br>_ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطيو اصلاح کول.<br>_ په زده کوونکو باندې پنځه پنځه جملې په کتابچو کې وليکئ.<br>_ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنې وکړي.<br>_ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، مثلاً صفتونه، په متن کې پيدا او په کتابچه کې يې وليکي او بيا يې د ټولګي په وړاندې ووايي.<br>_ د زده کوونکو هڅونه او تشويق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووايي.<br>_ په زده کوونکو څلورم فعاليت اجراء کړئ چې ټول زده کوونکي په کې برخه واخلي.<br>_ په زده کوونکو باندې شپږم فعاليت حل کړئ نور زده کوونکي وڅارئ چې د فعاليت په حل کې برخه واخلي.<br>_ د لوست لنډيز ورته ووايئ او د ارزونې لپاره پوښتنې وکړئ او په پای کې کورنۍ دنده ورکړئ. | _ څوتنه زده کوونکي د متن يو يوپراګراف لولي اونور ورته غوږ نيسي.<br>_ زده کوونکي دمتن لوستلوته غوږ نيسي اوخپلې غلطۍ اصلاح کوي.<br>– زده کوونکي په کتا بچوکې جملې ليکي.<br>– ز ده کوونکي پوښتنې کوي.<br>_ په کتابچوکې صفتونه ليکي اوپه جملوکې يې کاروي اوبيا يې دټولګي په وړاندې لولي.<br>– زده کوونکي دټولګي په مخ کې دمتن مفهوم په خپلوکتابچوکې ځرګندوي.<br>– زده کوونکي څلورم فعاليت اجرا کوي.<br>زده کوونکي شپږم فعاليت اجرا کوي.<br>پوښتنوته ځوابونه وايي اود کورنۍ دندې ياداشت کوي. | ۳۵ دقيقې |

۸_ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

د پنځم فعاليت ځواب:

موږ د مطالعې، تجربې، له رسنيو څخه په زده کړه سره خپل معلومات زياتولی شو.

_ د کتابونو په لوستلو او مطالعې سره د انسان مادي او معنوي اړخ پياوړی کېږي.

د شپږم فعاليت ځواب له متن څخه حلېږي.

۹_ **اضافي معلومات**:

په افغانستان کې د کتابتونو تاريخي بهير ته يوه ځغلنده کتنه

له لرغوني اريانا تر اوس مهاله زموږ په هېواد کې د کتاب ليکنې او ساتنې عنعنې هر اړخيزه، تفصيلي او تحليلي څېړنه د څو کتابونو غوښتنه کوي چې په لنډه توګه د هغو يادونه کوو:

_ په لرغوني اريانا او باختر کې:

د تاریخ او لرغون پوهنې د څېړنو له مخې څرګندېږي چې د کتاب لیکنې او ساتنې عنعنه له ډېرې لرغونې زمـــانې څخه په اریایي ټولنه کې دود وه. په دې لړ کې تر ټولو مهم سند چې په لرغوني اریانا کې د کتاب لیکنې عنعنه ترې څرګندېږي، د تاریخ طبري هغه روایت دی چې وایي:
((زردشت ویل چې پر ما له اسمانه وحې راځي، نو د وخت واکمن کشتاسپ کاتبان کېنول او حکم یې ورته وکړ، هغه چې زردشت وایي تاسې به یې لیکئ، کاتبانو د زردشت ټولې خبرې د غوایي پر دولس زرو پوستکو د زرو پـــه اوبو ولیکلې.))
د روم واتیکان په موزیم کې د راهاریس نېټې په مجسمه دا مطلب لیکل شوی دی، ((هخامنشي پاچا داریوش دغـــه سړی مصر ته ولېږه چې کتابخانو ته کتابونه ورکړي.))
همدارنګه حمزه بن حسن اصفهاني (۳۵۰ ق. _ ۹۶۰م.) له سکندر څخه وروسته د اشکاني ملوک په وختو کې د اویا (۷۰) کتابونو یادونه کوي چې د نجوم، طب، فلسفې او کرنې په هکله په یوناني او قطبي ژبو ژباړل شوی وو.
تاریخي روایات څرګندوي چې د لرغونو اریایانو کتابخانې په اتشکدو او دیني عبادت ځایونو کې وې. د اوستا هغه نسخه چې په اتمه میلادي پېړۍ کې په سمرقند کې ترلاسه شوې په هغې کې لیکل شوي چې زردشت د کشتاسپ په حکم خپل دین په دولس زرو نسخو کې په طلا ولیکه او د رهروان د اتشکدې په خزانه کې یې کېښود، نومیـــالی مؤرخ اروانښاد کهزاد عقیده لري چې دا هماغه د شاو پیکان کتابخانه وه چې سکندر مقدوني وسوځوله.
د کتابونو هغه متفرقې پاڼې چې د ونو په پوستکو لیکل شوې وې او په ۱۹۳۰م. کال په بامیانو کې د یـــو بـــودایي معبد په کتابتون کې وموندل شوې، موږ ته د دې څرګندونې کوي چې د اریایانو په ټولو معبدونو کې به وړې یا لوېې کتابخانې موجودې وې چې دوی په کې دیني او تاریخي اثار خوندي کول.
اروانښاد عبدالحی حبیبي د تاریخ طبري په حواله د خراسان د نیشا پور په سیمه کې د افیشن په نوم د یوې کتابخانې یادونه کوي چې د محبوس د کتاب په شمول نور ډېر دیني کتابونه په کې خوندي وو، همدارنګه ابوریحان البیروني په کتاب الهند کې وایي چې د کابل شاهانو نسب نامه لیکل شوې او د نغر کوټ په کلا کې ایښودل شوې وه. په همدې اساس ویلای شو چې له عبادت ځایونو څخه وروسته بل خوندي ځای چې لیکلي اثار به په کې ساتل کېدل، هغه زړې کلاګانې وې چې معمولاً به د ښار په منځ کې واقع وې.
د پایلې په توګه ویلای شو چې په دې زماني بهیر کې زیات شمېر اثار منځ ته راغلي او د خوندي ساتنې لپاره یـــې د مکان او زمان له شرایطو سره سم تدابیر نیول کېدل.
_ د اسلام د سپېڅلي دین له راتګ څخه د چنګیز خان تر یرغل پورې.
د لرغوني افغانستان لویدیځو څنډو ته د اسلام سپېڅلی دین د حضرت عمر فاروق د خلافت په وروستیو کلونو (۲۲ _ ۲۳هجري) کې د عبدالله بن عامر په مشرۍ د اسلامي لښکرو په راتګ سره رارسېدلی او بیا د حضرت علي کرم الله وجه د خلافت په وخت کې د عبدالرحمن بن سمره په مشرۍ اسلامي لښکرې د سیستان له لارې کابل ته راغلې او دلته یې د اسلام مقدس دین خپور کړ. وروسته بیـــا پـــه امـــوي (۴۱ _ ۱۳۲هجـــري) او عباســـي (۱۳۲ _ ۲۰۵هجري) دورو کې په خراسان کې د اسلامي فتوحاتو لړۍ پرمخ تللې او زموږ د هېواد په زیاترو سیمو کـــې د اسلام مقدس دین خپور شوی دی.
د یادونې وړ ده چې تر اسلام دمخه زموږ د هېواد په لویدیځو او شمالي برخوکې زردشتي دین او په ختیځو ســـیمو کې بودایي دین رواج درلود چې د اسلام د سپېڅلي دین په خپرېدو سره یې ټغر ټول شو، معبدونه یې رنګ او اثاریې وسوځول شول. او یا په نورو طریقو له منځه یووړل شول.

معلومه خبره ده چې د اسلام له راتګ سره ددیني علومو د زده کړې، تبلیغ او د تدریس مرکزونه جوړ شوي او په هغو کې په رسمي یا غیر رسمي توګه په ډله ییزه او یا ځانګړی بڼه د تدریس لړۍ پیل شوې ده، نو د دغو مرکزونو، مدرسینو، مبلغانو او زده کوونکو ته د عامو او ځانګړو کتابخانو موجودیت یوه حتمي او لازمي خبره ده.

په وروسته وختونو کې په هېواد کې د طاهریانو (۲۰۵ _ ۲۵۹ هجري) صفاریانو (۳۴۷ _ ۳۹۳هجري) سامانیانو (۲۷۹ _ ۳۸۹هجري) غزنویانو (۳۵۱ _ ۵۸۳هجري) سلجوقیانو (۴۲۹ _ ۶۳۲هجري) غوریـــانو (۵۴۴ _ ۶۱۰هجري) خوارزمشاهانو (۴۹۰ _ ۶۱۸هجري) په وختونو کې خپلواک افغاني اسلامي حکومتونه منځته راغلي دي. د دوی د حکومتونو دربارونه د دیني او نورو علومو د ښوونې او روزنې ستر مرکزونه وو. ستر ســتر دینــي عالمان او پوهان په کې راټول شوي وو.

دغو مرکزونو لویې او وړې کتابخانې درلودې چې په لنډه توګه یې دلته یادونه کېږي.

بلعمي کتابخانه، د بلخ د زندان د مدرسې کتابخانه، د ابوالفضل هروي کتابخانه، د غزني کتابخانه، سلطان محمود غزنوي کتابخانه، د بلخ نظامیه کتابخانه، د علاوالدین کتابخانه، د شهاب الدین غوري کتابخانه، د هرات د مدرسې کتابخانه او نورې.

د معاصر افغانستان له جوړښت وروسته په هېواد کې د ځینو کتابخانو نومونه دادي:

د احمدشاه بابا سلطنتي کتابخانه، د احمدشاه بابا ځانګړي کتابخانه، د پای منار پاچا صاحب کتابخانه، د ملا فیض الله دولت شاهي کتابخانه، د شیخ سعدالدین انصاري کتابخانه او نورې.

د امیرحبیب الله خان د واکمنۍ پر مهال کتابخانې او فرهنګي مرکزونه جوړ شول چې د قاضي محمد سعید خانعلوم کتابخانه د امیر عبدالرحمن خان کتابخانه، د غلام محمد طرزي کتابخانه، سلطنتي کتابخانه، حبیبیه کتابخانــه، د سراج الملت والدین کتابخانه، د محمود طرزي کتابخانه او نور.

د خپلواکۍ د ترلاسه کولو وروسته د کتابخانو لنډه یادونه:

په دغه دوره کې هم فرهنګي، ادبي ټولنې او کتابخانې جوړې شوې چې د کابل، کندهار او هرات ادبي انجمنونه یې ښې بېلګې ګڼلای شو.

او ورسره ورسره د عامو کتابخانو لړۍ هم پراخه شوه، د دغه مهال د ځینو کتابخانو نومونه دلته راوړو:

_ ملي کتابتون، د معارف کتابتون، عمومي کتابتون، د کابل ادبي انجمن کتابتون، د مطبوعــاتو کتــابتون، د ارګ کتابتون، د کابل پوهنتون کتابتون،، د انجمن تاریخ کتابتون، د پښتو ټولنې کتابتون، د کندهار پښتو انجمن کتابتون، د کابل دارالمعلمین کتابتون، د مېرمنو ټولنې کتابتون، حربي پوهنتون کتابتون او داسې نور.

دغه راز د افغانستان په ولایاتو کې هم یو شمېر عمومي کتابتونونه او یا هم ځانګړي کتابتونونه وخت په وخت جوړ شوي او پرانستل شوي دي.

لنډه دا چې په هېواد کې د کتابخانو د ساتنې او د هغو د بیا رغاونې او پالنې په اړه باید نړیوالې مؤسسې او دولتــي ادارې زیاته پاملرنه وکړي او هڅه وکړي چې دغه فرهنګي شتمنۍ په لا ښه توګه خوندي کړي چې زموږد بــډای اسلامي ملي فرهنګ ښه څرګندوی وکړي.

# نولسم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| وخت | د مطالبو شرح | د مطالبو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | د سولې نړۍ | ۱_ د لوست موضوع |
| | _ د سولې په ارزښت او اهمیت پوهېدل،<br>– د سولې په ارزښت او ګټو باندې خبرې کول،<br>_ صفت پېژندل او په جملو کې د هغه موندل،<br>_ په پای کې به زده کوونکي په خپلواکه توګه د تمرینونو د حل کولو وړتیا ترلاسه کړي. | ۲_ د زده کـــــــړې پوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې |
| | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | ۳_ د تدریس لارې |
| | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | ۴_ د تدریس وسیلې |
| | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | ۵_ د ارزونې لارې |
| ۶ دقیقې | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچول کول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه | ٦_ د زده کـــړې او تدریس فعالیتونه |
| ۴ دقیقې | _ که په کوم هېواد او سیمه کې سوله او امن نه وي وګړي به له څـــه ډول ستونزو سره مخامخ شي؟<br>_ سوله څه ته وایي؟ | ۷_ د انګیزې رامنځته کول |

| ۱_ ۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| _ په څو زده کوونکو د متن لوستل.<br>_ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیو اصلاح کول.<br>_ یو یو زده کوونکی بیت په تخته لیکي بل یې معنا کوي.<br>_ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې له یوبل څخه پوښتنې وکړي او دنه پوهېدو په صورت کې دې ښوونکی ځوابونه ووایي.<br>_ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، لکه دنوم اوصفت په اړه له مثالونوسره.<br>_ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي.<br>_ د زده کوونکو وېشل په ډلو او هرې ډلې ته د څلورم فعالیت پوښتنې کول د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې.<br>_ ښوونکی د لوست لنډیز وایي او بیا د ارزونې په هکله څو پوښتنې کوي. او له پوښتنو وروسته که وخت و، ورته فعالیتونه اجراء کول او د زده کوونکو د ستونزو پوښتنوته ځواب ورکول.<br>– ښوونکی کورنی دنده ورکوي. | _څو زده کوونکي متن لولي او نور زده کوونکي غوږ ږدي چې د کلمو تلفظ او د جملو ترکیب ته ځیر شي.<br>_ نور زده کوونکي ورته ځیر کېږي.<br>_ زده کوونکي په زړورتیا سره پوښتنې کوي.<br>– زده کوونکي دنوم اوصفت مثالونه په شفاهي توګه په جملوکې ورکوي.<br>– زده کوونکي د متن مفهوم په خپلو خبروکې وایي.<br>_ هره ډله په مشوره پوښتنه ځوابوي.<br>_ لنډیز ته غوږ ږدي او پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>– کورنۍ دنده په کورکې بشپړوي. | ۳۵<br>دقیقې |

۸_ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

د څلورم فعالیت ځواب:

_ سوله دې ته وایي چې د یوې ټولنې ټول خلک په ورورۍ او دوستۍ کې ژوند وکړي او ترمنځ جګړې او بې اتفاقي نه وي.

_ جګړه دې ته وایي چې خلک د مینې او محبت ژوند تېرولو په خلاف په خپلوکې یو د بل وینو تویولو ته ناست، یو بل وژني او یو بل ټپي کوي. دا کار کله خو په خپل منځ کې دځاني ګټو د لاسته راوړلو لپاره او ځینې وخت د بهرنیو لاس وهنو له امله وي.

_ د سولې ګټې دا دي چې په ټولنه کې هر اړخیز پرمختګ راځي د جګړو تاوانونه نه وي او هر څه د ژوندانه په ښه کولو لګېږي.

_بشردوستي:انسان دوستي،انساني مینه.

له خپلوهم نوعوسره مینه لرل.
_غوښنه او چاړه:
یوه اصطلاح ده دهغوخلکوپه هکله کاریږي چې یودبل ضدوي اونه سره پخلا کیږي.
_قانون:
هغه مقررات اواحکام دي چې ددولت دباصلاحیته اداري له خواوضع کیږي.

۹_ **اضافي معلومات**:

سوله او امن

سوله یوه ډېره مقدسه، سپېڅلې او ښکلې کلمه ده. مقدسه او سپېڅلی، خو ځکه ده چې په قرانکریم کې یې ستاینه شوې او هغه یې خیر (الصلح خیر) بللې ده او ښکلې ورته ځکه وایو چې د بشریت هستي، پایښت او سوکالي پــه هغې پورې اړه لري.

که د بشري نړۍ په هر ځای کې سوله نه وي، معلومه خبره ده چې هلته به جنګ جګړه برلاسې وي او په دې خــو پوهېږو چې جګړه بشریت ته له تباهۍ، ځورونې، ړنګونې او له منځه وړنې پرته بل زیری نه لري.

بې له دې چې انساني تمدن له خاورو سره خاورې او انسانیت د اور په لمبو کې وسوځي، په وینو کې یې ولمبوي او یا یې د ویر او ماتم پر ټغر کښېنوي، بل سوغات او لاس ته راوړنه له ځانه سره نه لري.

کله چې د بشري تاریخ پاڼې راواړوو، وینو هغو خلکو چې په خپل منځ کې د سولې صفا، او له نورو سره د سوله ییز ژوند لاره خپله کړې ده، د ترقۍ او تمدن له کاروان سره مله شوي او ډېر ژر د سوکاله او مرفه ژوند خاونـــدان او ډېرې سترې نیکمرغۍ یې په برخه شوي دي، خو بر عکس هغوی چې په شخړو او جګړو کې پخپله کیوتلې او یا په یوه او بله بهانه د نورو له خوا جنګ ته اړ ایستل شوي دي، نتیجه یې مرګ ژوبله، ویجاړتیا، تباهي، بربادي، فقـــر، بېوزلي او ډول ډول بدمرغۍ ګرځېدلې دي.

ویلای شو چې سوله د خیر ښېګڼې نوم دی چې په مفهوم کې یې ټولې مادي اومعنوي ښېګڼې نغښتې دي.

سوله او امن د ژوند نوم دی، د بسیا او سوکاله ژوند چې هر ډول مادي او معنوي نیکمرغۍ ورسره ملې دي.

سوله د ترقۍ، ابادۍ او ښیرازۍ نوم دی چې بشري ټولنې ته د پرمختلنې او هوساینې ځواک او واک ور په برخــه کوي.

ماخذونه:


۱_ سوله د اسلام له نظره، پوهنمل زاهدي احمدزی او نهضت فراهي.
۲_ په پښتو ادب کې د سولې انعکاس، د سرخېړونکی مرستیال محمد عارف غروال، علمي څېړنیزه پروژه.

# شلم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | قيدونه | |
| ۲ـ د زده کـــــړې پوهنيزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې | ـ زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>ـ په ګرامري قواعدو باندې پوهېدل،<br>ـ د قيد پېژندل،<br>ـ په جملو کې د قيد په ارزښت پوهېدل،<br>ـ په پای کې به زده کوونکي په خپلواکه توګه د تمرين په حل کولو بريـــالي شي. | |
| ۳ـ د تدريس لارې | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، ځانګړی فعاليت | |
| ۴ـ د تدريس وسيلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسيلې: د لوستلو، ليکلو او ډله ييز کار څارل او پايلې يې په کتابچه کې ليکل. | |
| ۶ـ د زده کـــړې او تدريس فعاليتونه | لومړنی فعاليت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کار کتنه اودتير لوست ارزيابي | ۶ دقيقې |
| د انګيـــزې رامنځتـــه کول: | ـ هغه کلمې چې د فعل د پيښيدو څرنګوالی ښيي او يا د هغه د پيښيدو ځای يا يې څرګندتيا، اړتيا او نورې ځانګړنې جوتوي په کوم نوم يادېږي؟ | ۴ دقيقې |

| وخت | د زده کوونکو فعالیتونه | ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | _ نور زده کوونکي ورته ځیر کېږي چې قید وپېژني.<br>_ زده کوونکي ځوابونو ته متوجې وي.<br>_ زده کوونکي د فعالیت په لیکلو پیل کوي او وروسته له لیکلو نه خپلې غلطۍ دکتاب له مخې سموي.<br>_ زده کوونکي په فعالیتونوکې ونډه اخلي.<br>_ زده کوونکي د جملو خالي ځایونه ډکوي.<br>– زده کوونکي فعالیت سرته رسوي.<br>_ د لوست لنډیز ته غوږ ږدي او پوښتنو ته ځواب ورکوي. | _ په زده کوونکو په تخته یوه جمله ولیکئ چې قید په کې راغلي وي او په بل یې په جمله کې وکاروئ.<br>_ له زده کوونکو پوښتنې کول چې قید پیژني او که نه، که یې ستونزه درلوده هغه ورته ځواب کړئ.<br>_ په یو زده کوونکي بل ته املاء ووایئ او هغه بل دې ولیکي بیا یې د کتاب له مخې ورباندې پرتله کړئ چې خپله غلطي وګوري.<br>_ ښوونکی په ټولو فعالیتونو کې زده کوونکي څاري.<br>_ په زده کوونکو باندې د متن د فعالیتونو څلورم او پنځم فعالیتونه سرته ورسوئ.<br>_ په زده کوونکو باندې د شپږم فعالیت خالي ځایونه ډک کړئ.<br>_ د لوست په لنډیز ورته خبرې وکړئ او بیا له هغه وروسته د ارزونې پوښتنې وکړئ.<br>_ که وخت و،ورته فعالیتونه پرې اجراء کړئ. |

۸_ د متن ستونزمنوپوښتنو ته ځوابونه:

_ قیدونه هغه کلمې دي چې د فعل څرنګوالی څرګندوي.

_ اصلي قیدونه د زمان قید، د مکان قید، د څرګندونې قید.

_ په جملو کې ځکه قید راوړل کېږي چې د فعل څرنګوالی وښیي.

_ د شپږم فعالیت حل په متن کې شته.

**۹_ اضافي معلومات**:

قیدونه هغه کلمې یا ژبني توکي دي چې په یوه جمله کې د فعل د پیښېدلو څرنګوالی ښیي، یا په بله وینا: قیدونه هغه ژبني عناصر دي چې د یو فعل د پیښېدو ځای یا مهال ټاکي او یا یې څرګندتیا، اړوندتیا، ټینګار او داسې نورې ځانګړنې څرګندوي.

په پښتو کې قیدونه په دوو ډولونو: اصلي او غیر اصلي یا نه ګردانېدونکو او ګردانېدونکو باندې وېشل شوي دي چې دلته یې هر ډول په ځانګړې توګه درپېژنو:

الف: اصلي یا نه ګردانېدونکي قیدونه:

نه ګردانېدونکي قیدونه په دې لاندې ډولونو وېشل کېږي:

۱_ د زمان او مهال قید:

چې د وخت او مهال له مخې د یو فعل پیښېدنه ښیي، لکه اوس، دمخه، پخوا، وړاندې، سملاسي، وړمه ورځ، وړمه شپه، پرون ورځ، نن، سبا، دوخته، ناوخته، سهار، غرمه، سږ کال، پروسږ کال، وړم کال، کال ته، بل کال ته، لمرخاته، لمر پرېواته او نور.

۲_ د ځای یا مکان قید:

چې د یو فعل پیښېدنه د ځای او چاپېریال له مخې څرګندوي، لکه دلته، هلته، مخکې، وروسته، شاته، مخ ته، ښکته، پورته، لاندې، باندې، دیخوا، له لېرې، له نږدې، مخ ښکته، مخ پورته، له پاسه، له لاندې او نور.

۳_ څرګندونې اود ټینګار قیدونه:

د یو فعل د پیښېدنې د څرګندتیا حالت یا ټینګار ښیي، لکه: په ښکاره، په پټه، په څرګنده، په ډاګه، په مېړانه، په نره، په خړو سترګو، په جګو سترګو، زړه نا زړه، په ناسته، په ولاړه، په منډه، هرو مرو، څه ناڅه، لږو ډېر، په کلکه، په ټینګه، غاړه په غاړه او نور.

ب: غیر اصلي یا ګردانېدونکي قیدونه:

ځینې داسې قیدونه هم شته چې کله له لازمي فعل سره راشي، هلته بیا د جملې د فاعل لپاره تعریف کېږي، خو که له متعدي فعل سره راشي په دغه حالت کې بیا د جملې د مفعول لپاره تعریف کېږي.

د یادونې وړ ده چې دغه تعریف د خپل، عدد او شخص له مخې ترسره کېږي.

له لازمي فعل سره:

| ناتېره زمانه (اوسنۍ زمانه) | تېره زمانه |
|---|---|
| (مفرد) زه (نارینه) د روند دروند ګرځم. | زه (نارینه) دروند ګرځېدم. |
| (جمع) زه (ښځینه، مؤنث) درنده درنده ګرځم. | زه (ښځینه، مؤنث) درنده درنده ګرځېدم. |
| موږ (نارینه) درانده، درانده ګرځو. | موږ (نارینه) درانده، درانده ګرځېدو. |
| موږ (ښځینه) درندې درندې ګرځو. | موږ (ښځینه) درندې درندې ګرځېدو. |

همداسې تر پایه (ته، تاسې، دغه) کې هم ګردانېږي.

یاددښت: په پورته بېلګو کې فعل لازمي دی او قید (دروند، دروند) د جملې د فاعل لپاره تعریف شوی دی.

۲ـ له متعدي فعل سره:

| ناتېره زمانه (اوسنۍ زمانه) | تېره زمانه |
|---|---|
| (مفرد) تور ما (نارینه) پوخ پېژني. | تور زه (نارینه) پوخ پېژندلم. |
| تور ما (ښځینه) پخه پېژني. | تور زه (ښځینه) پخه پېژندلم. |
| (جمع) تور موږ (نارینه) پاخه پېژني. | تور موږ (نارینه) پاخه پېژندلو. |
| تور موږ (ښځینه) پخې پېژني. | تور موږ (ښځینه) پخې پېژندلو. |

همداسې تر پایه په (تا، تاسې، دغه) کې هم ګردانېږي.
یاددښت: په پورته بېلګو کې فعل متعدي دی او قید (پوخ) د جملې د مفعول لپاره تعریف شوی دی.
له پورتنیو دواړو بېلګو څخه څرګندېږي چې ځینې قیدونه هم تعریف کېږي. په دې مفهوم کله چې فعل لازمي وي قید د جملې د فاعل لپاره د جنس او عدد له پلوه تعرفیږي او کله چې د جملې فعل متعدي وي، نو هلته بیا قید د جملې د مفعول لپاره د جنس او عدد له مخې ګردانېږي.
په ځینو ګرامري اثارو کې د قیدونو په مشهورو ډولونو (مکاني، زماني، څرګندي او ټینګاري) برسېره د شک قیدونه، د هیلې او تمنا قیدونه اود پوښتنې قیدونه هم معرفي شوي دي.

# یوویشتم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | نشه ـ ستره بدمرغي | |
| ۲ـ د زده کـــــړې پوهنیزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې | ـ د چرسو په زیا نونو پوه شي،<br>ـ په لوستلو، لیکلو پوهېدل،<br>ـ له نشه يي توکوځان وسا تي،<br>ـ له نشو څخه د ځان او نورو د ساتلو فکر ورسره پیدا شي. | |
| ۳ـ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴ـ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ګروپي کار څارل او پایلې يې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦ـ د زده کـــړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچولو څخه وروسته، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیـــستل، د کورني کار کتنه اودتیرلوست ارزيابي. | ٦ دقیقې |
| ۷ـ د انګیزې رامنځته کول: | ـ یوڅوک څنګه اوپه څه شي نشه کیږي ؟<br>ـ کوم نشه يي توکي پیژنۍ ؟<br>ـ نشې څه بدمرغې رامنځته کوي؟ | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| _ په زده کوونکو یویو پراګراف ولولئ.<br>_ په زده کوونکو دویم فعالیت اجراء کړي کــه اړتیا وه مرسته وکړئ. | _ څو زده کوونکي یو یو پراګراف لولي اونور زده کوونکي غوږ نیسي چــې د کلمــو تلفــظ زده کړي. | ۳۵ دقیقې |
| _ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیــو اصلاح کول. | _ زده کوونکي خپلې نمګړتیاوې سموي. | |
| _ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې د متن په مفهوم خبرې وکړي او د څلورم فعالیت پوښــتنې پرې ځواب کړئ. | – زده کوونکي د متن مفهوم وایــي اوپوښــتنې کوي. | |
| _ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټــولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست پــه مفهــوم خبرې وکړي. | – زده کوونکي په موضوع باندې خبرې کوي. | |
| _ د زده کوونکو وېشل په ډلو او هرې ډلې تــه د پنځم فعالیت په مطابق دنده ورکول او د هغــوی څارل چې ټول په کې ونډه واخلي. | – زده کوونکي په ډله ییزه توګه په فعالیت کــې برخه اخلي. | |
| _ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې زده کوونکوته لارښوونه.<br>_ په څو زده کوونکو بانــدې د شــپږم او اووم فعالیت اجراء کول. | – زده کوونکي جملې بشپړوي اوتمرینونه حلوي.<br>– دفعالیتونو په حلولوکې برخه اخلي. | |
| _ د لوست لنډیز وایي، بیا ارزونه کوي او وروسته کورنۍ دنده ورکوي. | _ پوښتنو ته ځواب ورکوي او کورنۍ دنده پــه کور کې سرته رسوي. | |

**۸_ د متن ستونزمنوپوښتنو ته ځوابونه:**

**نشه يي توکي: هغه دي چې انسان يې وڅښي، ويې خوري او يا يې بوی کړي يا يې پيچکاري کړي او يا په نــورو ډولونو ترې استفاده وکړي، د مرکزي اعصابو سيستم په کړو وړو باندې ناوړه اغېزه ولري.د اعتياد، ګنګيست او سستۍ سبب ګرزي.**

**نشه يي توکي په طبيعي توګه پيدا کېږي.**

**عادت:عادت دې ته وايي چې په پرېښودلو د انسان وجود ته څه زيان نه رسيږي.**

**اعتياد: په نشه يي موادو اعتياد يا عملي کيدل او يا روږدي کيدل هغه حالت دی چې د انسان په جسمي او روانــي دواړو حالتونو کې بدلون راځي او په فزيکي برخه کې يې تخريب او زيان پيدا کېږي. يا په بل عبارت لــه مخــدره موادوسره خوی اوعادت پيدا کوي، د اعتياد لاملونه په چاپيريال او شخصيت پورې ډېره اړه لري او بــېلا بېــل**

لاملونه لري.
اشور: مصر
کوکائین:کوکاین یوه قوي نیشه یي او اعتیاد را منځته کوونکې ماده ده چې دکوکاین په نامه د یو ډول بو تې لــه پاڼو څخه جوړیږي.دلویدیځي نیمي کر ې په هیوادونو کې ډیر خلک ور باند ې اخته دي.سپین رنګ اوخوند لري.
کوکائین د پودرو په بڼه په پوزه کې کش کېږي او یا د پیچکارۍ په واسطه د بدن تر پوستکي لاندې لګول کېږي.
کابو ۳ ګرامه کوکائین په انسان کې د اعصابو فلج رامنځته کوي، زړه لوییږي، د ويني فشار رامنځته کوي او دغه راز مغزي زیانونه را منځته کوي او دا هغه بوټي دي چې پلنه پاڼه لري او زیاتره په امریکا کې پیدا کېږي.
هیرویین:هیروین له تاریاکو څخه جوړیږي .دغه ماده د مورفینو له تقطیر څخه لاسته را ځي. د هیروئینو په نشه کې انسان ته د قهرمانۍ او اتلولۍ حالت راځي او د ا دروغجن حالت دی. له مورفینو څخه یې قوت زیات دی **که ددوو اونیو لپاره دور ځي ۶۰ګر امه مصرف کړي له۸-۱۲**ساعتونو وروسته بیاد مصرف احساس کوي . دغه ماده پــه ۱۸۷۳ کال انګلیسي یوه سي. ار. رائټ C. R. Wright د سنت مري په روغتون کې کشف کړه او د هغه نوم یې تیترا اسیل مورفین کېښود. دا ماده تر مورفین ډېره خطرناکه ده.
هیروئین د پوډرو په بڼه او په اوبو کې د محلول په بڼه پیدا کېږي. هم دودېږي او هم تنفس کېږي. تــر محلــول وروسته د پیچکارۍ پواسطه هم کېږي. داسې معتاد کسان ستړ یا حس کوي. شخص د څو ځله عملي کولو پواسطه ورباندې روږدي کېدای شي اوپه هغو کې د زهرو اندازه د مورفینو دوه برابره ده، خو د مورفینو په اندازه خــوب راوړونکي نه دی. د هیروئینو کارول د زړه د ضربان دزیاتوالي، د سږ و د تنفس د کموالي، د اشتها د کم والي او د سترګو د عضلا تو د پړسوب سبب کېږي.

**۸_ اضافي معلومات**:
چرس د نشه لرونکو توکو څخه شمېرل کېږي چې په طبیعت کې په ازاد ډول پیداکېږي. د دغه بوټي کارول لومړی په چین کې له ۲۰۰۸میلاد څخه ۷۴۰ کاله د مخه ثبت شوي دي. د چرسو بوټی له ډېر پخوا څخه په افغانستان، هندوستان او ایران کې مشهور دی. په اوستا کې د بنګه Banga په نامه په سانسکریت کې د Bahaga په نامــه راغلی دی چې د بنګ کلمه هم له همدې کلمې څخه راوتلې ده. بیا وروسته دغه کلمه د نړۍ په بېلا بېلو هېوادونو کې په بېلا بېلو نومونو یاده شوې ده.
د بېلګې په توګه په جنوبي افریقا کې د Dagga په نوم، په مرکزي افریقا کې د Djema په نوم په مکسیکو کې د Grifa په نوم په ترکیه کې د Kabak په نوم په برازیل کې د Machonha په تونس کې د Takrouri په نوم او په شمالي امریکا Bhang په نامه یادېږي.
چرس په عصبي مرکز با ندې زیا ته اغیزه کوي، له خندا او تخیلاتو سره ملګری وي، ورو ورو وجــود کمــزوری کېږي. لومړی ځل په چین او بیا په هند کې پېژندل شوي دي. او بیا ۵۰۰ کاله د مخه اروپا ته وړل شوي دي. له نن څخه ۱۰۰۳ کاله د مخه په شمالي افریقا او اسیايي هېوادونو دود شو ل. چرسو ته ماریجوانا وایي. دغه کلمه له اسپا نوي څخه اخیستل شوې ده چې د زهرو معنا لري. د چرسو په څکولو سره په نورو خطرناکو نــشه یــي موادو اود اعتیاد کیدوزمینه برابریږي چا چې له چرسو څخه نیشه پیل کړي وي.په پا ی کې په حر فو ي معتاد باند ې بد لیږي.

د چرسوله څکولو څخه وروسته په څکوونکي شخص باندې نشه راځي.دغه اغیزه له نیم ساعت څخه تر دوو ساعتو پورې رسیږي. د چرسو په نیشه کې د سترګو رګونه له وینې ډکیږي او سترګې یې سرې ښکاري. دزړه ضربان زیاتوي اوپه حرکتونو کې یې تعادل له منځه ځي، روا ني احتلالات په کې را منځته کیږي ستونی او خوله یې وچیږي.

.

د احصایې له مخې په امریکا کې ۶۳۰ میلیونه وګړي د کال یو ځل چرس څکوي او ۸ میلیونه تنه په منظمه توګه چرس څکوي، د چرسو لوګی له ۲۵ _ ۵۰ پورې تتراهایدرو کانا بینول ماده لري چې په تنفسي جهاز اغیزه کوي او ورو ورو حافظه کمزوري کوي. لومړی د تنفسي سیستم تنظیم له لاسه ورکوي، وروسته د زړه د ناروغانو په څیرد ناروغۍ احساس کوي، د زړه او سرطان په ناروغۍ اخته کیږي او ورو ورو جرئت له لاسه ورکوي او د پیسو د لاسته راوړلو لپاره په جرائمو لاس پورې کوي. چرسیان ډېرې خبرې کوي خو په اخر کې خپلې خبرې تېرې هیریږي، له همدې کبله د درک توان نه لري.

که په لنډ ډول د چرسو زیانونه ډ لبندي کړو ویلای شو چې د چر سو په څکولو سره په معتاد شخص کې لاندې ناروغۍ را منځته کیږ ي:

- دتنفسي مجراوو التها ب اوبندیدل،
- دسږو عفونت اود سږي سر طان،
- د وزن کم والی اوپه جنین کې زیانونه،
- رواني اوعصبي اختلالات،
- دسترګو د کسي پراخوالی،
- تندوالی او بي حوصله ګي،
- مزمن برانشیت،
- ډیرې خبرې کول او بي دلیله خندا،
- دبدن دفاعي قوت له منځه تلل،
- دهاضمي جهاز کمزوري،
- دفکري تمرکز کمزوري اوله کار اود رس سره د مینې نشوا لی،
- ډ ار، ویره او بې زړه توب.

**ماخذونه**:


۱_ نشه يي توکي _ تنباکو تر هیروینو پورې، د سرمحقق نعمت الله اندړ تالیف، ۱۳۸۳ هـ. ش. کال.

۲_ تدریجي خود کشي، اکاډمیسن، عبدالاحد عشرتي، ۱۳۸۳ هـ. ش. کال چاپ.

۳_ مخدره مواد، د افغانستان د علومو اکاډمي، د مقالو مجموعه، ۱۴۲۰ هـ. ق. مشعل مطبعه.

۴_ اګاهي از اضرار مواد مخدر، تهیه و ترتیب شمس الاسلام جمالي.

# دوه ویشتم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | پټه خزانه | |
| ۲_ د زده کـــــړې پوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتیموخې | _ د پټې خزانې د شاعرانو د دورې په هکله معلومات درلودل،<br>_ په پټه خزانه کې د پښتودلرغونواثارو په هکله معلومات در لودل،<br>_ د پټې خزانې له لوستلو سره د زده کوونکو د مینې او علاقې پیدا کول،<br>_ د پټې خزانې د لیکلو په سبک پوهېدل،<br>_ د پټې خزانې د مؤلف په ژوند او د خزانې د لیکلو په هدف پوهېدل. | |
| ۳_ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴_ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵_ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦_ د زده کـــړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچولو څخه وروسته، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیـــستل، د کورني کار کتنه اودتیر لوست ارزونه | ٦ دقیقې |
| ۷- د انګیزې رامنځته کول: | د بېلګې په توګه:<br>_ ایا د پټې خزانې نوم مو اورېدلی دی؟<br>_ پټه خزانه چا لیکلې ده؟<br>_ ولې یې لیکلې ده ؟<br>_ په هغې کې څه لیکل شوي دي؟ | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| _ په څو زده کوونکو په وار سره د متن لوستل. | _څو زده کوونکي متن لولي اونور زده کـــوونکي ورته غوږ نیسي د کلمو تلفظ او د جملو استعمال ته متوجې کېږي. | ۳۵ دقیقې |
| _ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیـــو اصلاح کول. | – زده کوونکي دخپلو لوستلونمګړتیاوې اصـــلاح کوي. | |
| _ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنې وکړي. | – زده کوونکي پوښتنې کوي. | |
| _ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې کول. | _ د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول. | |
| _ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټـــولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي. | _ د لوست په مفهوم خبرې کول. | |
| _ په څو زده کوونکو د څلورم فعالیت پوښتنو ته ځواب ورکوي. | | |
| _ د زده کوونکو وېشل په ډلو او په هرې ډلې د فعالیت مطابق دنده اجراء کول. | _ زده کوونکي دڅلورم فعالیت پوښتنوته ځـــواب ورکوي. | |
| _ له زده کوونکو سره د جملو په بـــشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې مرسته او لارښوونه. _په زده کوونکو د پنځم فعالیت مطابق کار کول. | _ زده کوونکي په ډ له ییز فعالیت کې ونډه اخلي. _ زده کوونکي جملې پوره کوي اود تمرینونو په حل کې برخه اخلي. | |
| _ زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چـــې شـــپږم فعالیت اجراء کړي او ښوونکی دې څار وکـــړي چې ټول په کې ونډه واخلي. | _ زده کوونکي په صنفي کارکې ونډه اخلي. | |
| _ په زده کوونکو اووم فعالیت اجراء کول. | – زده کوونکي دکتاب فعالیتونه سرته رسوي. – زده کوونکي په فعالیت کې و نډه اخلي. | |
| _ د لوست لنډیز ورته ویل او بیا د نوي لوســـت ارزول او د کورنۍ دندې ورکول. | – زده کوونکي کورنۍ دنده په کورکې بشپړوي. | |

۸ـ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

حاجي میرخان د میرویس نیکه نوم دی، پلار یې ښالم خان نومېده. میرویس نیکه په ۱۰۸۴ ق. د کلات په شـمال کې د تازې رباط په جنوب کې زېږېدلی دی. په ۱۱۲۰ ق. کال کې یې د ګرګین له وژلـو وروسـته د کنـدهار خپلواکي ترلاسه کړه. اته کاله ولسمشر و.

ګرګین: اصلي نوم یې وختنګ و مخکې له هغه چې د ایران د صفویانو له خوا د قندهار د حکمران په توګه وټاکـل شي، په ګرجستان کې یې د صفوي دولت په خلاف بغاوت وکړ چې ونیول شو، خو دا چې مسلمان شو هغه پاچا یې له سزا څخه تېر شو، د صفوي دربار له خوا د کندهار د کلانتر په توګه وټاکل شو. په ۱۱۱۴ ق.کې کندهار تـه لاړ او په ۱۱۲۰ق. کال کې د میرویس نیکه له خوا ووژل شو.

شاه حسین:

شاه حسین په ۱۱۱۴ هـ. ق. کال د کلات په سیورې علاقه کې وزیږید. تر ۱۲ کلنۍ پورې یې د وخت دودیـز علوم له ملا یارمحمد څخه ولوستل. په ۱۴ کلنۍ کې یې پلار مړ شو. کله چې محمود په ایران باندې لښکر کشي وکړه، د کندهار د چارو مشري یې ورته وسپارله. له هغه وروسته د نادر افشار تربرید پورې په همدغه مقام پـاتې شو. په ۱۱۵۰ ق.کال کې شاه حسین له خپل اولاد سره ما زند ران ته تبعید شو. نوموړی پـه ۱۱۵۲ کـال د شعبان په میاشت کې په مازند ران کې مړ شو.

ګرجستان: ګر جستان سیمه چې اوس دیوه خپلواک هیواد په توګه را منځته شوې ده داسیا په لویدیځ کې اود اروپا په لویدیځ کې پرته ده .دغه هیواد د شمال له خوا په روسیه پورې نښتی دی ، جنوب ته یې ارمنـستان اوترکیـه اولویدیځ خواته یې تو ره بحیره ده،په شمال کې یې د ققفاز دغرونوسلسلې دي، ډیر ځنګلونه اوزیاتې اوبه لـري اقلیم یې په ژمي کې یخ اواورې پکې پرتې وي.پایتخت یې د تبلیسي ښار دی حکومت یـې جمهـوري،دین یـې مسیحي او ژبه یې ګرجي ده.

## مأخذونه:

۱ـ کتاب فشرده تاریخ افغانستان، داکټر فاروق انصاري.
۲ـ هوتکي ها، عبدالرؤف بینوا.
۳ـ تاریخ مختصر افغانستان، عبدالحی حبیبي.
۴-ګیتا شناسي نوین کشور ها،دچاپ کال ۱۳۸۴هـ.ش. کال.

**۹_ اضافي معلومات**:

پښتو چې د یوه لوی، پراخه او خواره واره قوم ژبه ده، د ډېرو لرغونو اثارو درلودونکې ده،خو زموږ د پښتو ژبې ډېر لرغوني اثار اوس نشته. د دې علتونه دا دي چې پښتانه د تاریخ په اوږدو کې له ښاري ژوندانه څخه لیرې پاتې شوي دي او له بلې خوا زموږ د هېواد تاریخ هم د پردیو له خوا د بریدونو او په مقابل کې یې د مبارزې او جګــړو ډک تاریخ دی. له یوې خوا زموږ خلکو د خپلو ادبي اثارو لیکلو ته وخت پیدا کړی نه دی او که چا لیکلي دي، یا د دښمنانو له خوا وړل شوي او یا ډېر قلمي اثار پخپله د خلکو له خوا یا په اوبو کې اچول شوي، یا په قبرونو کې اچول شوي او یا د درناوی په خاطر سوځول شوې دي. د بېلګې په توګه د هندوستان د ډېلي په کتابخانه کې زموږ قلمي نسخې شته، د لندن د برټش موزیم په کتابخانه کې زموږ زیاتې پښتو قلمي نسخې موجودې دي. دغــه راز د جرمني د تیوبینګن په کتابخانه کې د علي خان دیوان،د رحمان بابا دیوان د خیرالبیان قلمي نسخه موجوده ده چې د بایزید روښان اثر دی. او د خیرالبیان اوسنی کتاب د همدغې یوازېنۍ نسخې له مخې چاپ شوی دی.

نو خبره مو دا کوله چې زموږ د پښتو ژبې اثار د وخت تاړاکونو له منځه وړي دي. لومړی د تذکرة الاولیاء کتاب و چې د پټې خزانې تر پیداکېدو د مخه زموږ په واک کې و او د پښتو ارزښتناک اثر بلل کېده، هغه د ســلیمان ماکو د تذکرې څو پاڼې وې چې د پښتانه شعراء په لومړي ټوک کې راغلي دي. د د غو پاڼو په پیدا کېدو سره د پښتو ژبې ادبي عمر تر ۳۰۰ _ ۴۰۰ کلونو پورې مخکې لاړ. په هغوی کې د بیټ نیکه، اسماعیل، ملکیار، تایمني او قطب الدین بختیار او نورو شعرونه وو چې په غزنوي دورې پورې یې اړه درلوده، خو کله چې پټه خزانه پیــدا شوه، دا ترې ثابته شوه چې د پښتو ژبې ادبي عمر د اسلام د مبارک دین د راتګ تر لومړۍ دورې (۱۳۹ هــــ.) پورې مخ ته لاړ، ځکه چې په هغه وخت کې امیر کروړ دا شعر ویلی دی.

زم یم زمری پر دی نړۍ له ما ا تل نسته – پر هند و سند و پر تخارو پر کابل نسته _ له ما ا تل نسته

دا د امیر کروړ حماسي شعر دی. (د پښتو ادبیاتو له نوموړي شعر څخه څرګندېږي چې د پښتو له دغه شعر چې په پټه خزانه کې راغلی دی،حماسي افکار لري، د محتوا دکیفیت له مخې د پښتو ژبې د شعر له لوستلو سره سم یــو پوخ شعر دی چې د کوچنیوالی دوره یې تېره کړې ده.)

## مأخذونه:


پټه خزانه، د محمد هوتک تالیف

د پښتو ادبیاتو تاریخ، پوهاند حبیبي

د پښتو ادبیاتو تاریخ، ډاکټر زیورالدین زیور.

# درویشتم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| وخت | د مطالبو شرح | د مطالبو سرليکونه |
|---|---|---|
| | مېرمن مستوره شال | ۱ــ د لوست موضوع |
| | ــ د مستورې شال په باب او د شعر په اړه يې معلومات ترلاسه کړي،<br>– په پښتو ادب کې دښځينه شاعرانو سره اشنا شي،<br>– په متن کې د نومونو اوصفتونو پيژندل اوپه جملوکې د هغوکارول. | ۲ــ د زده کــــــړې پــــوهنيزې، مهــــارتي اوذهنيتي موخې |
| | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، ځانګړی فعاليت | ۳ــ د تدريس لارې |
| | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه، پنسل او قلم | ۴ــ د تدريس وسيلې |
| | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د لوستلو، ليکلو او د ډله ييز کار څارل او پايلې يې په کتابچه کې ليکل. | ۵ــ د ارزونې لارې |
| ٦ دقيقې | لومړنی فعاليت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کار کتنه اودتير لوست ارزونه | ٦ــ د زده کـــــړې او تدريس فعاليتونه |
| ۴ دقيقې | ــ د اوسني دوران د پښتو کومې ښځينه شاعرانې پيژنئ؟<br>ــ د مستورې شال په نوم د کومې شاعر ې شعر مو لوستلی يا اورېدلی دی؟ | ۷– د انګيزې رامنځته کول: |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ــ په ځینو زده کوونکو د متن یو یـــو پراګـــراف ولولئ.<br>ــ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیـــو اصلاح کول.<br>ــ په څو زده کوونکو د شعري بېلګـــې مفهـــوم ووایـــئ او ښوونکی دې ټولګی وڅاري چې نظـــم وساتل شي.<br>ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخـــه پوښـــتنې وکړي چې دریم فعالیت سرته ورسېږي.<br>ــ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټـــولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي.<br>ــزده کوونکوته ووایئ چې متن ولولي اوپه هغه کې صـــفتونه اوخـــاص نومونـــه پیـــداکړي اوپـــه خپلو کتاپچوکې یې ولیکي.<br>ــ که وخت و، زده کوونکي په ډلو ووېـــشئ او هرې ډلې ته ورته یو فعالیت ورکړئ.<br>ــ له زده کوونکو سره د جملو په بـــشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې مرسته وکړئ.<br>ــ په زده کوونکو باندې د پنځم فعالیت تش ځایونه ډک کړئ.<br>ــ د لوست د لنډیز ویلو وروسته د ارزونې پوښتنې وکړئ او کورنۍ دنده ورکړئ. | ــ څوزده کوونکي دمتن یویوپراګراف لـــولي او نور زده کوونکي ورته غوږ ونیسي.<br>− دمتن په لوستلوکې زده کوونکي خپلې غلطـــۍ سموي.<br>− زده کوونکي شعر معنا کوي.<br>ــ زده کوونکي ځواب ورکوي.<br>− زده کوونکي په ټاکلې موضوع باندې خبـــرې کوي او نور زده کوونکي غوږ نیسي.<br>ــ زده کوونکي په خپلو کتابچو کـــې صـــفتونه اوخاص نومونه لیکي.<br>ــ زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې ونډه اخلي.<br>− زده کوونکي جملې بشپړوي.<br>− زده کوونکي تش ځایونه ډ کوي.<br>ــ د ارزونې پوښتنو ته ځواب ورکوي اوکـــورنۍ دنده یاداشت کوي. | ۳۵ دقیقې |

۸_ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:
ادبي ټوټه: د هنري نثر یو ځانګړی ډول دی چې ادب پوهانو د هنري نثر په نامه یاد کړی.دا ځکه چې دا نثر شعري کیفیت لري. په داسې لیکنو کې د انشاء خیال ساتل کېږي. روان او له هنري ښکنو باید برخمن وي.

دریم فعالیت د متن له مخې بشپړېږي.
د پنځم فعالیت ځواب د متن نه بشپړېږي.

## ۹_ اضافي معلومات:

د شته سندونو له مخې د پښتو ژبې د ادبیاتو تاریخ تر ۱۳۹ پورې رسېږي، ځکه چې مونږ ته د پټې خزانې په واسطه د امیر کروړ شعر لاسته راغلی دی چې محمد هوتک په خپل لیکل شوې اثر پټه خزانه کې د پښتو ژبې شاعران پــه دریو برخو وېشلي دي. په لومړۍ خزانه کې د ۲۲ تنو هغو شاعرانو پیژندنه او د شعرونو نمونې راغلي دي چې تــر هغه یې پخوا ژوند کړی و. په دویمه خزانه کې د ۲۱ تنو هغو شاعرانو پیژندنه راغلي ده چې د محمد هوتک معاصر وو.
په دریمه خزانه کې د ٦ تنو ښځینه شاعرانو، نازو توخي، حلیمي ختک، بي بي نیک بختې، بي بي زینب، زرغونې او رابعې پیژندنه او د شعرونو بېلګې راغلي دي.
د نومړو شعرونو له پوخوالي څخه څرګندېږي چې په پښتو ادب کې د ښځینه شاعرۍ تاریخ هم ډېر وړاندې لــه نارینه وو سره سم راروان دی. د پښتو ادبیاتو په اوږده تاریخ کې ان تر اوسه پورې د ښځینه شاعرانو برخه تشه نه ده پاتې شوې او د ښځینه شاعرانو لړۍ تر اوسه پورې راروانه ده.
زمونږ د معاصرو ادبیاتو په پراخه لمن کې په بره او کوزه پښتونخوا کې ډېرې ښځینه شاعرانې تېرې شوې او اوس هم ډېرې ژوندۍ دي، مونږ دلته په هېواد کې له ښځینه شاعرانو څخه یوه مېرمن مستوره شال وه.
دغه مېرمن د ښځینه غورځنګ یوه تکړه پالونکې، د افغان نجونو روزونکې، ښوونکې، شاعره او لیکواله وه، د کونړ یوې روحاني کورنۍ ته منسوب د شال پاچا په کورنۍ کې په ۱۳۰۹ هــ.ش. کال کې زېږېدلې ده. د د غې مېرمنې کلی شال نومېږي، نو ځکه یې شال تخلص کاوه چې د کونړ په اسمار کې واقع دی. د خپل پــلار پــه مرســته او لارښوونه یې په شپږ کلنۍ کې په لوست لیک پیل وکړ.
د هغه وخت دودیز علوم یې په کور کې زده کړل، د خصوصي زده کړو په وخت کې یې له پښتو ادبیاتو سره هــم مینه پیدا شوه.پښتو او دري اثار یې ولوستل، شعري ذوق یې راوپارېده او په شعر ویلو یې پیل وکړ.
مېرمن مستوره شال چې څه وخت کابل ته راغله. په کابل کې د ښځو نوي او راولاړ شوې غورځنګ د هغې په فکر او شاعرۍ باندې اغېزه وکړه او په شعرونو کې یې پوره بدلون رامنځته شو او ځان یې په هغه غورځنــګ پــورې ونښلوو.
د شعر ترڅنګ یې په نثر لیکلو هم پیل وکړ. هغې نه یوازې دا چې شعر ویلو، بلکې په معارف کې یې د ښوونکې په توګه دنده سرته رسوله او د زده کوونکو په روزنه کې یې روښانه ونډه واخیستله. په تېره بیا د ښځینه افغاني نسل په روزنه اود ذهنونو په روښانولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې. هغه د افغانستان د ښــځو د علمــي او

فکري کچې لوړولواو ښځو ته د سواد رسولو او د عامولو په کار کې له مخکښو پښتنو مېرمنو څخه وه. دغه راز د هغه وخت د راډيو افغانستان تکړه او فعاله ويانده وه.
د ٦٠ کلونو په بهير کې يې يو ځل بيا هم د افغانستان په راډيو کې د هنر او ادبياتو په اداره کې کار کــاوه او دې کار ته يې په هېواد کې د ډاکټر نجيب الله د واکمنۍ تر رنګېدو پورې په کابل کې دوام ورکړ. مېرمن مستورې شال په کابل کې په ادبي کړيوکې ځان ثبت کړ او د يوې تکړه شاعرې او ليکوالې په نوم وپېژندل شوه، د هېــواد پـــه مطبوعاتو کې يې شعرونه او ليکنې خپرېدې او د هنر او ادبياتو له ادارې څخه يې پروګرامونه خپرېدل. هغـــې لـــوړ خيالونه او فکرونه درلودل.
لکه وايي چې:

*ستا د ښکلا مخ ته چې سپوږمۍ ورمخامخ شوله*
*ژر يې ښايست ځکـــه د زوال لمنـــه ونيــــوه*
*ستا د تبسم غوټۍ تـــــه ګل سبـــا کې وويـــل*
*ستا په غوړېدو مـــا د جـــمال لـــمنـــه ونيـــوه*

مېرمن مستوره چې کله له کابل څخه پېښور ته لاړه،هلته يې په جلا وطنۍ کې څو کاله له کړاو او ستونزو سره مخ وه، په پېښور کې له څه مودې وروسته اسلام اباد ته لاړه او بيا له اسلام اباد څخه ايبټ اباد ته ولېږدېده، خـــو لـــه ستونزو سره سره يې خپله ادبي مينه هېره نه شوه او قلم يې له لاس څخه لېرې نه کړ.
د ژوندانه تر هغه وخت چې جوړه او په ايبټ اباد کې وه، خپلې شعري ليکنې يې کله نا کله کولې او له فرهنګـــي ادارو سره يې ارتباط درلود، خو کله چې ناروغه شوه بيا پېښور ته راغله. په نوموړې ښار کې يې خپله تداوي کوله، تر هغو چې په ١٣٧٧هـــ. ش. (١٩٩٨م.) د سنبلې په ٢١ نېټه په پېښور کې وفات شوه او له هغه ځايه يې جنازه خپلې پلرنې هديرې ته راوړل شوه.
مېرمن مستوره شال په هېواد کې لومړنۍ معاصره شاعره او ليکواله وه چې د پوړوني په نامه يې د شعر مجموعه چاپ شوه.
په غونډو او مشاعرو کې څرګنده شوه،د کليوالي سختو دودونو سره سره يې د ښځو د غورځنګ په پياوړتيا كـــې ونډه واخيسته او د ښځو د حقوقو د لاسته راوړلو لپاره مبارزه وکړه.
مېرمن مستوره چې کله په پېښور کې له ډېرې ګرمۍ څخه تنګه شوه، نو بيا داسې شعر وايي:

دا څومره ګرمي ده خدايه نن د پاکـــستان پـــه مـــخ
درومي سيلابونه د خولـــو د هـــر انـــسان پـــه مـــخ
ګرم دي بادونه د تنـــور د ســـرو لمبـــو پـــه شـــان
مخ، غوړونه سيځي جوړ دوزخ دی د جهان پـــه مـــخ
اور اخلي تلی زموږ دلارې پـــه ســـر تلـــی نـــه شـــو
هر قدم چې ږدو ګويا چې څو اتش فـــشان پـــه مـــخ
يو خـــوا پرديـــسي ده، بېکـــسي او بيوســـي دومـــره

بله خوا ګرمي شوله بــلا جــوړه د ځـــان پــه مـــخ
هلته ټول وطن کـــې د جګـــړو جـــوړ محاذونـــه دي
اور د جنګ بلېږي تور لوګی دی د افغـــان پـــه مـــخ

مستوره شال یوه ارامه او زړه سوانده ښځه وه، د هغې په شعرونو کې د وطن ترخه حقایق څرګند شوي، د وطن د حالاتو په اړه یې اوښکې تويې کړي دي. د هېواد په دننه کې يې ناخوالې او ظلمونه غندلي دي او په خپلو شـــعرونو کې يې له وېرې پرته ورته ګوته نیولې ده، لکه چې په خپله وايي:

دا خو زه یم چې راوېښ کړم له درانه خوبـــه قومونـــه
په سپېره دښته کې جوړ کـــړم د جزبـــاتو محـــشرونه
ایینـــــه دواړه قــــام یـــــم ورتـــــه ښـــــیمه عیبونـــــه
لکه څاڅکي د باران هـــومره ډېـــر ډېـــر پېغوورونـــه
ته مې وپېژنه څوک یم سرګردان د بحـــرو بـــر یـــم
بل څه نه یمه انسان یم سوز او ساز لـــرم شـــاعر یـــم

# څلرویشتم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ــ د لوست موضوع | د ماینونو احتمالي سیمې | |
| ۲ــ د زده کــــــړې پوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې | ــ د ماینونو ډولونه وپېژني او په زیان رسولو یې پوه شي، <br> ــ له ماینونو څخه څنګه ځان وساتي او څنګه دماین پاکانو ډلو اویــا ســـپین ږیروته خبر ور کړي، <br> – له ماینونو څخه د ځان د ساتلو فکر ور سره پیدا شي، <br> – مین لرونکي ځایونه اوله ماین نه پاکې شوې ځمکې وپیژني. | |
| ۳ــ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴ــ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ــ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار، <br> د لوستلو، لیکلو او د ډله ییز کار مشاهده او د څارنې پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦ــد زده کــــړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: <br> دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه اودتیر لوست ارزونه | ٦ دقیقې |
| ۷– د انګیـــــــــزې رامنځته کول: | ــ په تاسوکې چا د ماین نوم اوریدلی دی ؟ <br> ــ ستاسوپه کلي کې چا په کومه چاودنه کې د وجود کوم غړی لــه لاســه ورکړی دی ؟ | ۴ دقیقې |

| ۱_ ۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| _ زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولـــولي او بیا دې څو تنه زده کوونکي په وار سره مـــتن پـــه لوړاواز ولولي. که اړتیا وه یو ځل دې ښـــوونکی متن ولولي.<br>_ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیـــو اصلاح کول.<br>_ په زده کوونکو باندې دویـــم فعالیـــت ســـرته ورسوئ .<br>_ له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې په دریم فعالیت کې راغلي صفتونه په جملوکې وکاروي.<br>_ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټـــولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي.<br>_ په ډلو د زده کوونکو وېشل او هرې ډلې تـــه د فعالیت ټاکل.<br>_ له زده کوونکو سره د جملو په بـــشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې مرسته کول.<br>_ په زده کوونکو باندې څلورم فعالیـــت ســـرته ورسوئ.<br>_ په زده کوونکو باندې پنځم فعالیت اجراء کړئ او ټولګی وڅارئ چې ټول په کې برخه واخلي.<br>_ په زده کوونکو اووم فعالیـــت اجـــراء کـــړئ وروسته د لوست لنډیز ووایئ او بیـــا د ارزونـــې پوښتنې وکړئ، که وخت وښوونکی کولای شـــي چې نور ورته فعالیتونه اجراء کړي. | _ زده کوونکي دې غوږ ونیسي چې د کلمو تلفظ او د جملو استعمال زده کړي.<br><br><br><br>– زده کوونکي خپلو غلطیوته پاملرنه کوي.<br>_ زده کوونکي فعالیت اجراء کوي.<br><br>_زده کوونکي صفتونه په جملوکې کاروي.<br><br><br>– زده کوونکي دمتن مفهوم په خپلو خبروکې وایي.<br><br>– په ډله ییزو فعالیتونوکې برخه اخیستل.<br><br>– زده کوونکي جملې بشپړوي اود تمرینونو په حلولوکې برخه اخلي.<br>– زده کوونکي څلورم فعالیت سرته رسوي.<br>– دپنځم فعالیت په اجرا کولوکې برخه اخلې.<br><br>– داووم فعالیت په حل کې کارکوي.دمتن<br>– لنډیزته غوږ نیول اودارزونې پوښتنوته ځوابونه ورکول. | ۳۵ دقیقې |

۸_ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

ماینونه په جنګي سیمو کې د پوځي ځایونو د ساتلو لپاره په دوو ډولونو کې کارېږي، دغه پوځي وسله لـــه ډېـــرې لرغونې زمانې څخه په کار وړل کېږي.

ځمکني ماینونه او بحري ماینونه:

بحري ماینونه په بحرونو کې ایښودل کېږي او ځمکني ماینونه په ځمکه کې د دښمن پر ضد کاروي.

د وسایطو ضد ماینونه چې درووند وزن پرې راشي انفجار کوي. او د پرسونل ضد ماینونه هغه دي چې د حیواناتو او انسانانو وزن پرې راشي چاودنه کوي.

**۹ _ اضافي معلومات:**
ماینونه هغه مخصوص شیان دي چې له پلاستیک، لرګي او اوسپنې څخه جوړ شوي دي، په هغو کې ناچاودلې مواد ځای په ځای شوي وي.دغه وسلې د لاس یا پښې یا نورو شیانو د فشار په واسطه چوي او په خپل شاوخوا کې انسانان او حیوانات وژني او یا یې ټپي کوي. ماینونه په بېلا بېلو شکلونو جوړېږي. او زیاتره په سترګو نه لیدل کېږي، د خاورو لاندې وي.
د ماینونو تاریخ تر رومیانو پورې رسېږي. رومیانو به د دښمن په لاره کې کندې ایستلې، په هغو کې به یې تېره میخونه په تېږو اېښودل، له پاسه به یې پرې خاورې اچولې. بیا وروسته همدغه رومیانو داسې میخونه ایښودل چې څلور تېره څوکې به یې درلودلې. په ۳ میلادي پېړۍ کې په چین کې ژوک لیانګ داسې ماین اختراع کړ چې انفجار یې کاوه.
په ۱۲۷۷ میلادي کې چینایانو د مغولو په مقابل کې له انفجاري ماینونو څخه استفاده وکړه او په ۱۵۷۳ میلادي کال کې د جنوبي آلمان د اګزیرک په ښار کې د سومائیل په نامه یو پوځي انجینر د فلادر ماشین اختراع کړ چې په چاودنه کې یې ډېر قوت درلود او تر ۱۹ پېړۍ پورې یې ترې استفاده کوله.
د پرسونل ضد ماین د لومړي ځل لپاره په۱۸۶۲ م. کال کې جوړ شو چې برقي فیوز یې درلود.المانیانو په نړیواله لومړۍ جګړه کې ترې استفاده وکړه او دغه هم المانیانو جوړ کړ او ددغه ماین د عصریتوب طراحي یې وکړه .
په ۱۹۹۹ م. کال کې د کانادا د اوتاوا په ښار کې یوه معاهده لاسلیک شوه چې له دې وروسته به څوک ماین نه جوړوي او نه به یې کاروي. دا معاهده ناقصه وه ځکه نورو ماینونو ته پکې اشاره نه وه شوې.
د نړیوالو سازمانونو په هلو ځلو د ICBL په نامه یعنې د ځمکې د ماینونو ضد د مقابلې اداره جوړه شوه چې په هلو ځلو یې نږدې ۱۲۰۰ غیر دولتي سازمانونو د نړۍ په ۶۰ هېوادونو کې د ماینونو په ایستلو او شنډولو کار پیل کړی دی، خو سره له دې د نړۍ ځینې هېوادونه چې د اتاوا معاهده یې لاسلیک کړې نه ده، ماینونه جوړوي.
زموږ په هېواد کې له ۱۳۵۷ هـ. ش. کال راهیسې چې جګړه روانه ده، د جګړو بېلا بېلو خواوو د ټانګ ضد او پرسونل ضد ماینونه ایښي دي. غیردولتي سازمانونه چې ملګري ملتونه ورسره مرسته کوي، زموږ په هیواد کې د ماینونو په شنډولو بوخت دي. تر اوسه پورې په هېواد کې ۷۰۲ ډوله ماینونه پېژندل شوي دي او له ۱۹۸۶ کال راهیسې څه له پاسه ۱۱۳ میلیونه مربع متره ځمکه له ماینونو او نورو چاودونکو توکو څخه پاکه شوې ده او تر۱۱ میلیونوزیات ماینونه شنډ شوي دي.
افغانستان د نړۍ له هغو هېوادونو څخه دی چې زیات ماینونه او ناچاودلي مهمات په کې شته. په هېواد کې د جنګ جګړو په بهیر کې د جګړو د دواړو خواوو له خوا ماینونه ایښودل شوي دي چې اوس مهال هم موجود دي او په هره میاشت کې زیات کسان په کې وژل کېږي.
خو د ماینونو د ساحې د پېژندلو لپاره له بېلا بېلو نښو څخه استفاده کېږي .
مثلاً په سور رنګ ماین لرونکي ځایونه رنګېږي دا ترې څرګندېږي چې دلته ماینونه شته.
په سور رنګ رنګ شوې تېږې د ناچاودو مهماتو شته والی څرګندوي، په سپین رنګ رنګ شوې تېږې او نښې له مهماتو څخه د پاکوشوو سیمو نښه بلل کېږي.
ماینونه او ناچاودې مهمات په داسې سیمو کې دي چې هغه له جګړو راپاتې شوي وي. یا په هغو کې د ځارویو

پوستکي هډوکي موجود وي، یا پخوا په هغه کې پوځي کمینونه تېر شوي وي یا د ګولیو او صندوقونو نښې نښانې موجودې وي.

_ که چېرې ماین وچادو، امکان لري چې په شاو خوا کې نور ماینونه هم وي، ځکه باید له شاوخوا چاپېریال ســـره دقت وشي او هغه ځای ته څوک ور نه شي.

_د ماین قرباني ته ډاډ ورکړئ چې روحي حالات یې خراب نه شي اوله خپل ځای څخه ونه خوځېږي.

_ د ملکي مرستو لپاره ماین پا کانو، پولیسو، کلینکونو اوروغتونونو سره په تماس کې شئ.

که چېرې وینې ترې بهېدلې وي ورته ووایئ چې ټپ په لنګوټي یا دسمال وتړي او وینه یې بنده کړئ.

که څوک ټپي اویامعلول شوی وي باید ورسره مرسته وشي او درناوی ورته وشي او په ټولنه کې د کار کولو زمینه ورته برابره شي. ټپي ته ډاډ ورکړئ چې په ټولنه کې یې درناوی وشي او خپلې تجربې وساتي،خپله علمي سرمایه په کار واچوي. باید له هغو سره ناوړه رفتار ونه شي، هغوی ته د انسانانو په توګه درناوی وشي.

## پنځه ویشتم لوست

**(د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | بامیان یوه لرغوني تاریخي سیمه | |
| ۲ـ د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتیموخې | ـ د بامیانو په پېژندلو سره په فرهنګي میراثونو باندې پوه شي،<br>ـ د بامیانوپه تاریخي اوفرهنګي ارزښت پوه شي او خبرې پرې وکـړای شي،<br>ـ په زده کوونکو کې د بامیانو له ولایت سره مینه پیداشي،<br>ـ د هېواد د نورو ولایتونو د لرغوني تاریخي نومونه ولیکلای شي. | |
| ۳ـ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴ـ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵ـ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې پـه کتابچه کې یادداشت کول. | |
| ٦ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضری اخیستل، د کورني کـار کتنه او د تیر لوست ارزونه | ٦ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ـ په تاسو کې چا د بامیانو ولایت لیدلی دی؟<br>ـ د بامیانو فرهنګي خواوې څه دي؟<br>ـ ایا تاسو په بامیانو کې بتان لیدلي او یا مو د هغو په اړه څه اورېـدلی دي؟<br>– په بامیانوکې کوم لرغوني اثار شته ؟ | ۴ دقیقې |

| ۱ـ ۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ـ په زده کوونکودمتن لوستل.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطیــو اصلاح کول<br>ـ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښــتنې وکړي.<br>ـ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، لکه: د نوم او صفت په اړه له مثالونو سره.<br>ـ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټــولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووايي.<br>ـ په ډلو د زده کوونکو وېشل او هرې ډلې تــه د فعالیت ټاکل چې حل یې کړي.<br>ـ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې د زده کوونکو لارښوونه<br>دلوست دلنډيز ویل اودنوي لوست په هکله پوښتنې کول. | دمتن لوستل اودنو رو له خوا د متن لوستلوته غوږ نیول چې دکلمــوتلفظ اود جملوترکیــب زده کړي.<br>ـ د کتاب پوښتنو ته سم ځواب ویل.<br>ـ نومونه اوصفتونه په جملوکې کارول.<br>– دټولګي په مخ کــې دلوســت مفهــوم پــه خپلوخبروکې څرګندول.<br>– په ډله ییزو فعالیتونوکې برخه اخیستل.<br>– دجملو بشپړول اودتمرینونوپه حل کې برخــه اخیستل.<br>ـ دلوست لنډيزته غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |

۸ـ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:
د څلورم فعالیت ځوابونه په خپله متن کې شته.
د پنځم فعالیت ځواب له متن څخه بشپړېږي.

۹ـ اضافي معلومات:
په ۱۳۰۵هــ. ش. کال کې چې د افغانستان د سیمو اطلس جوړ شو،په هغه کې د افغانستان ټوله ســیمه پــه۲۹ ولایتونو ووېشل شوه او هر ولایت په نقشه کې معلوم کړی شو. یو له دغو ولایتونو څخه بامیان و چې اوس هم په اداري وېش کې د یو جلا ولایت په نوم موجود دی.
بامیان د افغانستان له مرکزي ولایتونو څخه دی چې زیات اوسیدونکي یې هزاره دي او د هېواد له یخو ولایتونــو څخه شمېرل کېږي. په اوړي کې اب و هوا ښه،خو په ژمي کې ډېرې واورې په کې اوري.خلک یې په اقتــصادي لحاظ زیات پیاوړي نه دي،کرنې او مالدارۍ په کې وده کړې ده، خو دغه ولایت د تاریخي اثارو له پلوه د زیــات ارزښت او لیدنې وړ دی چې د کلونو او پیړیو په اوږدو کې یې د سیلانیانو توجه ځانته اړولې ده.
د بامیانو کلمه له (فان ـ یانک) څخه اخیستل شوې ده چې په پنځم میلادي پېړۍ کې کارول کېده او په مــیلادي پېړۍ کې دغه ولایت د زیاتو بودا یانود تجمع مرکز و او لیدونکي به ورته راتلل.
کله چې چنګېز دغې سیمې ته راغی،د خپل لمسي د قتل په غچ کې یې ټول اوسیدونکي ووژل، امر یې وکړ چــې د دې سیمې نوم ماو یا لیغ کېږدئ. یعنې کنډواله. له همدغه تاریخ څخه (۱۲۲۱م. ـ ۶۱۸هــ.ق.) دغه ښار پــه کنډواله او ویرانه بدل شوی و. په بامیانو کې دوه مجسمې چې یوه یې ۳۵ متره او بله یې وروسته جوړه شوه ۵۳

متره وه، دا دواړه په دويمه او دريمه ميلادي پېړۍ کې جوړې شوې چې په ټوله نړۍ کې شهرت يې درلود، دا دواړه مجسمې په رنګونو او جواهرو باندې ښکلې شوې وې چې اوس دغه مجسمې ورانې شوي دي.

د باميانو ولايت مشهور ښارونه له غلغلې ښار، ضحاک ښار، اهنګران، شهر خشک څخه عبارت دي

په افغانستان کې د ګريکو بوديک مدنيت په تاريخ کې ډېر مشهور دی چې په لرغوني افغانستان کې يې شهرت او پراخوالی موندلی دی چې تر جاپان، کوريا، چين، تر اوسني سيستان،سريلانکا او هند څخه تر تاجکـــستان پـــورې سيمې يې په نفوذ کې وې. د نړۍ له ګېلا ګېلو سيمو څخه به راهبان او زايرين افغانستان ته راتلل او په افغانستان کې دغه پاملرنه باميانو ته اوښتې وه. تر ټولو لومړی چيني زيارت کوونکی فاهيان و چې په ۴۰۰ ميلادي کې باميانو ته ورغلی دی او د باميانو د سترې مجسمې په اړه يې معلومات ليکلي دي، هغه ليکلي دي چې د باميانو دره شـــنه او پاکه ده سترې مجسمې يې هره ورځ نمانځل کېږي، ډېرې مذهبي مدرسې په کې شته، زيات زيارت کـــوونکي او سوداګرورته راځي. تر فاهيان وروسته هيون تسنګ په ٦۰۰ ميلادي کې ورته ورغلی دی هغه ليکي چې په باميانو تر لسو زياتې خانقاوې موجودې دي او تر ۱۰۰۰ زيات واعظين لري چې دبودا مذهب تبليغوي.

له هغوی وروسته د نورو نړيوالو څېړونکو او زايرينو مخه ورته رااوښتې ده.

ماخذونه:

رسول باوري، مدنيت های اوليه افغانستان، ۱۳۷۱.

مجله اجتماعي علوم،پوهنتون کابل ۱۳٦۷

اطلس مجلات افغانستان.

# شپږویشتم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| وخت | د مطالبو شرح | د مطالبو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | سره میاشت | ۱ــ د لوست موضوع |
| | ــ د سرې میاشتې د مرستود وړکسانو په هکله معلومات ترلاسه کړي،<br>ــ د سرې میاشتې د جوړیدو په هکله معلومات ترلاسه کړي،<br>ــ د سرې میاشتې د ارزښت په هکله خبرې وکړای شي او ویې لیکلای شي،<br>ــ له سرې میاشتې سره یې مینه پیدا شي،<br>ــ د سرې میاشتې په فعالیتونو پوه شي. | ۲ــ د زده کــــــړې پـــــوهنیزې، مهـــــارتي اوذهنیتي موخې |
| | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړې فعالیت | ۳ــ د تدریس لارې |
| | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | ۴ــ د تدریس وسیلې |
| | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | ۵ــ د ارزونې لارې |
| ۶ دقیقې | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچولو څخه وروسته، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیـــستل، د کورني کار کتنه اودتیرلوست ارزیابي. | ۶ــ د زده کــــړې او تدریس فعالیتونه |
| ۴ دقیقې | ــ سره میاشت څوک پیژني؟<br>ــ د سرې میاشتې دنده څه ده؟<br>ــ سره میاشت له څه ډول خلکو سره مرسته کوي؟<br>ــ خلک او شتمن کسان باید له سرې میاشت سره څه مرسته وکړي؟ | د انګیـــزې رامنځتـــه کول: |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| _ په زده کوونکو یو ځل په چوپتیا سره متن ولولئ او بیا وروسته په څو زده کوونکو متن په مناسب اواز ووایئ. | _ زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>_ زده کوونکي د متن غلطیو ته ګوري او د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |
| _ په زده کوونکو باندې دریم فعالیت اجراء کړئ او ټول زده کوونکي وڅارئ چې ټول په کې برخه واخلي. | _ زده کوونکي په فعالیت کې ونډه اخلي. | |
| _ د زده کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي. | _ زده کوونکي په فعالیتونو کې برخه اخلي اود ټولګي په مخ کې دلوست لنډیز په خپلوخبروکې وایي. | |
| _ په څو ډلو د زده کوونکو وېشل او هر ډلې ته د پنځم فعالیت ورکول او د زده کوونکو څارل چې ټول په کې برخه واخلي.<br>. | _ زده کوونکي ډله ییز فعالیت اجراء کوي. | |
| _ که اړتیا وي له زده کوونکو سره د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې مرسته وکړئ. | – زده کوونکي جملې بشپړوي اودتمرینونو په حلولوکې برخه اخلي. | |
| _ په زده کوونکو باندې د شپږم فعالیت اجراء کول. | – په زده کوونکوباندې شپږم فعالیت تر سره کوي. | |
| _ د لوست لنډیز ویل بیا د ارزونې پوښتنې او د کورنۍ دندې ورکول. | _ د لنډیز ویلو ته غوږ نیسي او د ارزونې پوښتنو ته ځواب ورکوي او په پای کې که وخت و، ورته فعالیتونه په زده کوونکو اجراء کوي. | |
| ۸_ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه: | | |

**اضافي معلومات**:

لکه څنګه چې د لوست په متن کې راغلي دي، د سره صليب د نړيوالې کمېټې له بنسټ ايښودونکو څخه يو هم سويسي هانري دونات و. د ۱۸۵۹م. کال د جون په ۲۴ نېټه چې فرانسوي او اطريشي عسکرو د ايټاليا په شمال کې د سالفرينو په ښار کې جګړه کوله، له ۱٦ ساعتونو جګړې وروسته ۴۰ زره کسان مړه او ټپيان شول.

د همدې وژنې په ماښام هانري دونات چې د سوداګرۍ کاروانه يې پر مخ بيول، دغه ځای ته ورسېد. د پېښې په ليدلو ډېر خفه شو، ځکه چې ټپيان بې برخليکه پراته وو. دونان ورسره طبي مرستې وکړې او په دې عمل خلک خوشحاله شول، کله چې بېرته سويس ته لاړ د ۱۸٦۲م. کال د نومبر په مياشت کې يې يو کتاب وليکه چې د سالفرينو يادداښت نومېږي په دغه کتاب کې يې د يو تړون د رامنځته کېدو وړانديز وکړ.

دغه کتاب يې سياست مدارانو او واکمنانو ته ولېږه. په ۱۸٦۳م. کال کې د فبروري په مياشت کې د سويس دولت د عامه هوساينې د ټولنې په نوم د يوې خيريې مؤسسې وړانديز وکړ چې د دونان نظريه عملي شي او په دې هکله يې پرېکړه وکړه چې د دغه کميسيون په غړو کې ګوستاف موانيه، ګيوم هانري، دوفور، لويي اپيه او تيودور نو مونه وو. د هانري دونان په ګډون يې د فبروري په ۱۷ سره وليدل. د جګړو د ټپيانو لپاره يې د مرستو رسولو لپاره د نړيوالې کمېټې بنسټ کېښود.

وروسته يې دغې کمېټې ته د پراختيا زمينه برابره او مينه وال يې زيات شول چې په متن کې ورسره اشاره شوې ده.

لومړی نظريه د سره سليب د جوړېدو سبب شوه او بيا وروسته په دې اړه نړيوال قانون جوړ شو. په دغې کمېټې کې١٦ هېوادونو او څلورو بشرپالو مؤسسو ګډون وکړ. په ۱۹٦۳م. کال کې د اکتوبر په ۲۴ نېټه دغې مؤسسې خپل استازی په نړيوال کنفراس کې د ګډون لپاره ولېږه. په سپينه ځمکه د سره صليب نړيوال نښان تصويب او سور صليب د يوې خيريه مؤسسې په نوم رامنځته شو.

د افغاني سرې مياشتې ټولنه چې د سره صليب د نړيوالې ټولنې غړيتوب لري، په هېواد کې يوه خيريه ټولنه ده. په ۱۹۲۴م. کال کې يې په کار پيل کړی دی اوپه ۱۹۵۲م. کال کې يې تګلاره جوړه او تصويب شوې ده چې ۱۰۱ مادې لري، اداري تشکيلات يې معلوم شوې او د ارګانونو دندې يې له نړيوالوقوانينو سره سم برابرې شوي دي.

په ۱۹۳۴م. کال د افغانستان حکومت د دغې تګلارې د ليدلو په بنسټ سره مياشت په رسميت وپېژندله، دغه ټولنه د ((افغاني سرې مياشتې ټولنه)) په نوم ونومول شوه.

د ۱۹۵۴م. کال د سپتمبر په دويمه نېټه د نړيوالې کمېټې له خوا په رسميت وپېژندل شوه.

او د ۱۹۵۵م. کال د نومبر په ۱۱ نېټه د صليب احمر د ۸۳ وم غړي په توګه وپېژندل شوه، له هغه وخت څخه تر اوسه پورې په نړيواله کچه شهرت لري.

افغاني سره مياشت اوه ګوني نړيوال قوانين (بشريت، غير پلوي توب، بې طرفي، ازادي، رضاکارانه خدمتونه، يووالی او يو رنګي او نړيوالې هڅې) مراعات کوي.

**د سرې مياشتې غړې**:

د سرې مياشتې په غړيتوب کې د بېلا بېلو هېوادونو يو شمېر ملکي او عسکري مامورين، سوداګر، روښانفکران،

افغاني محصلین، زده کوونکي ځوانان او رضاکاران شامل دي.
سره میاشت د خپلو مقررو او اساساتو سره سم د جګړو او طبیعي افتونو له مصیبت ځپلو سره مرسته کوي.
د زلزلې، قحطۍ او وچکالۍ په وخت کې له هېوادوالو سره مرستې کوي.
دغه راز په هغو ځایونو کې چې سیلاب راغلی او زیانونه یې اړولي، د سرې میاشتې ټولنې تر خپل توان پورې مرسته ورته رسولې ده او د سملاسي مرستو په کولو کې له دولت سره مرستندویه ده.
افغاني سره میاشت د هر ولایت لپاره د هغو مصیبتونو او احتمالي پېښو د راتلو په پام کې نیولو سره یوه اندازه امدادي مالونه او پیسې په پام کې نیسي او تیاروي یې چې په یو ناڅاپي پېښو کې یې ورته ورسوي، دغه مرستې د هروالي په مرسته چې د ټولنې افتخاري غړیتوب لري، د هغه ولایت د سرې میاشتې د ټولنې د غړو په همکارۍ وېشل کېږي.
که چېرې پېښه پراخه وي، سره میاشت د امدادي مالونودویشلو لپاره یو ټیم لېږي.
دغه راز سره میاشت په کابل کې ښار او ولایتونو کې د مرستو څه دپاسه ۲۵ مرکزونه لري او د مرکزي روغتون په نوم یو روغتون لري چې دکابل په سالنګ واټ کې دی، دغه راز یو روغتون د کندز ولایت د امام صاحب په ولسوالۍ کې جوړ شوی دی چې روغتیایي خدمتونه سرته رسوي.
په ټولنیزه برخه کې افغاني سره میاشت د هېواد د مرکز او ولایتونو د مرستون سر لارې دی، یتیمانو، سپین ږیرو او معلولینو سره مرسته کوي هغوی اعاشه کوي او د شپې تېرولو ځای یې په خپل امکان برابر کړئ او د دغو مؤسسو له لارې بشري مرستې کوي.
په اوس وخت کې څلور مرستونونه لري چې د کابل، ننګرهار، کندهار او هرات په ولایتونو کې دي.
او څه دپاسه ۱۵۰۰ تنو سره مرسته کوي.
د مرستو موخه له بېوزلو کورنیو سره مرسته ده.
په روغتیایي برخه کې فعالیتونه:
افغاني سره میاشت د خلکو د خدمت لپاره ده او روغتیایي خدمتونه یې هم له پامه نه دي غورځولي.

دغه مرکز څه دپاسه ۲۵ روغتیایي مرکزونه لري او د وه روغتونونه لري.
په دغو مرکزونو کې لومړنی مرستې، لکه: پیچکاري، پانسمان، واکسین او نورې مرستې کېږي چې دغه مرستې د لیګ او نړیوال سره صلیب او سرې میاشتې له خوا کېږي.

## د عوایدو برخه:

افغاني سره میاشت د بشر دوستۍ د مفکورې پربنسټ مالي مرستو ته اړتیا لري چې دغه مرستې له بهرنیو نړیوالو خیریه مؤسسو، افغاني کمک کوونکو په واسطه او د لاترۍ له لارې ترلاسه کوي چې د لاتري ټکټ سابقه یې له ۲۶ کلونو څخه زیاته شوي ده چې نن سبا یې ډېر پرمختګ کړی دی له هغې څخه لاسته راغلې ګټه په مصیبب **ځپلو وېشي**.
دغه راز نوره پانګه د غړیتوب له ونډو،حکومتي بسپنو، سوغاتي مالونو، د کورنیو،بهرنیو او بشر دوستو اشخاصو له

مرستو او سوغاتونو، د ګمرکي صادراتو او وارداتو له يو فيصد ورکړې څخه برابروي.
دغه راز د نندارتونونو له ګټې، د سرې مياشتې دمنقولو او غير منقولو شتمنيو له کرايي څخه،د کنسرتونو او ننداروله عوايدو د مامورينو د معاش له هديې څخه پوره کېږي.
افغاني سره مياشت له بهرنۍ نړۍ سره هم خپلې اړيکې پراخوي. دغې ټولنې په تېرو کلونو کې د سونامي له مصيبت ځپلو سره مرسته وکړه او نور هم داسې مرستو ته ژمنه ده.
افغاني سره مياشت ټولنه يوه اونيزه لري چې سره مياشت نومېږي او يوه درې مياشتنۍ مجله لري چې په پــښتو او دري ژبو باندې خپرونې لري.
دغه راز په ۱۵ ورځو کې يو راديويي پروګرام لري چې د دې خپرونو له لارې د دغې ټــولنې اهــداف توزيــع او کمکونو ته يې انعکاس ورکول کېږي.
دغه ټولنه هر کال د ثور ۱۸ نېټه چې د می له ۸ سره برابرېږي د سره صليب د نړيوالې ورځې په نامه لمانځي، دغه راز دغه ورځ د هانري دونان د زېږيدو له ورځې سره هم برابره ده.
په دغه ورځ باندې د سرې مياشتې ټولنه ځانګړې خپرونې لري.
د سرې مياشتې مؤسسه يوه بشردوسته ناپيیلې ټولنه ده. دچا پلوي نه کوي. پوره ازادي لري. رضاکارانه خدمتونــه کوي اويووالی لري او په هر هېواد کې د يووالي غوښتنه کوي او په هر هېواد کې ديووالي غوښتونکي ده.

ماخذونه:

۱ــ معلومات مختصر پيرامون جمعيت افغاني (سره مياشت)، کمېټه بين المللي صليب احمر.
۲ــ د سره صليب نړيواله کمېټه، ICRC.

# اوویشتم لوست

## (د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | صدر خان خټک | |
| ۲_ د زده کـــــــړې پوهنیزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې | _ د صدر خان خټک دپيژندنې په هکله د معلوماتو پيداکول،<br>_ د صدرخان خټک په شاعرۍ او نوروادبي کارونوباندې پوهیدل،<br>_ د هغه د شاعرۍ په مفاهیموپوهیدل،<br>_ د پښتو ادب د يو پخواني شاعرصدرخان د کتابونو پـــه اړه معلومـــات ترلاسه کول. | |
| ۳_ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴_ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵_ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦_ د زده کـــړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه او د تیر لوست ارزیابي. | ٦ دقیقې |
| د انګیـــزې رامنځتـــه کول: | _ د خوشحال خان خټک د کورنۍ په باب څه معلومات لرئ؟<br>_ تاسو صدرخان خټک پيژنئ او د هغه نوم مو اورېدلی دی؟<br>_ د صدرخان خټک د شاعرۍ او لیکوالۍ په هکله مو څه اورېدلي دي؟<br>_ ښوونکی کولای شي پدې ډول د صدر خان خټک په هکله د وخت په پام کې نیولو سره پوښتنې وکړي. | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| _ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو لارښوونه، د هغو تشویق او هڅونه چې پوښتنو تـه ځوابونـه ووايي.<br>_ د متن په لوستلو کې.د زده کوونکو د غلطیـو اصلاح کول.<br>_ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښـتنو ته ځواب ووايي.<br>_ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، لکـه د نوم او صفت په اړه له مثالونو سره.<br>_ د زده کوونکو وېشل په ډلو او هرې ډلې تـه د دویم فعالیت ور کول.<br>_ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې د زده کوونکو لارښوونه.<br>_دمتن لنډیز ویل اودنوي لوست دارزونې په خاطر څوپوښتنې اوبیا دکورنۍ د ندې ورکول. | _ څوزده کوونکي متن لولي اونور ورته غوږ نیسي اوهم پوښتنوته ځوابونه ورکوي.<br>– خپلې غلطۍ اصلا ح کوي.<br>– پو ښتنې ځوابوي.<br>_ زده کوونکي متن په دقت سره ګـوري چـې خاص نومونه او صفتونه په نښه کړي اوپه خپلـو جملوکې يې کاروي.<br>_ د دويم فعاليت په اجراء کولو کې برخه اخلي.<br>– زده کوونکي جملې بشپړوي اوتمرینونه حلوي.<br>_ زده کوونکي د ارزونې پوښتنو ته غوږ ږدي، ځواب ورکوي، ورسپارل شوې کورنۍ دنده په کـور کـې سرته رسوي او په بل درسي ساعت کې يې ښـوونکي ته راوړي. | ۳۵ دقیقې |

۸_ د متن ستونزمنو پوښتنو ته ځوابونه:

مخمس:

مخمس د شعریوډول دی مطلع او بندونه یې پنځه پنځه مسرۍ لري او د مطلع پنځه مسرۍ یو ډول قافیه لري او د بندونو څلورمه مسرۍ هم قافیه او پنځمې مطلع سره په قافیه کې یو شان وي.

قصیده: لغوي معنا يې قصد او اراده ده، په اصطلاح کې هغه شعر دی چې تر یوې مطلع لاندې ویل کېږي، د بیتونو شمېر يې له غزل څخه زیاتېږي او تر ۲۰۰ بیتونو پورې رسېږي.

دلي او شهۍ:

د صدر خان خټک یوه منظوم داستاني کتاب دی چې د ((دلي)) په نوم د یو ځوان او د ((شهۍ)) په نـوم د یـوې پېغلې په زړه پورې کیسه ده.

ادم خان او درخانۍ:

دا هم د صدر خان خټک یو په زړه پورې داستاني اثر دی چې د خپل پلار خوشحال خان خټک په لارښوونه یې نظم کړی دی. ادم خان درخانۍ د پښتوپه فولکلوري او ولسي کیسوکې زیات شهرت لري او صدرخان خټک د همدغه شهرت له امله په خوږه پښتو نظم کړې ده.

**۹_ اضافي معلومات**:

صدرخان خټک په خپلو شعرونو کې ځان د صدرخوشحال په نامه بللی دی، د خوشحال خان زوی د شهباز خـان

لمسی د یحیٰ کړوسی دی او د ملک اکوړي کودی دی، د ځېړونو په نتیجه کې څرګنــده شــوې ده چــې پــه ۱۰۶۵هــ.ق. کال کې زېږېدلی دی. د خټکو د اکوړي په سرای کې زېږېدلی دی.
صدرخان په یوه علمي، فرهنګي او سیاسي کورنۍ کې زېږېدلی او د خوشحال تر روزنې او پالنې لاندې لوی شــوی دی.په خپله صدرخان د دغې روزنې تائیدکړی دی. صدرخان نه یوازې دا چې شاعر او لیکوال و،بلکې د خپل پلار په ملتیا یې په ډېرو جګړو کې برخه اخیستې ده.
زلمی و چې له خپل پلار سره یې په جګړه کې برخه اخیستي ده. د خوشحال خان د وینا له مخې د ډوډې په جګړه کې یې هم برخه اخیستې وه چې په دې وخت کې ۲۶ کلن و، صدرخان په بېلا بېلو وختونو کې د لاچي او تیري د فوځدار په توګه هم ټاکل شوی دی.
له جګړو سره سره یې شاعري هم کړې ده او یو شمېر ارزښتناک اثار یې تألیف کړي دي. له دغو اثارو څخه یې یو هم دیوان دی.
نوموړی شاعر و، خو له بده مرغه چې د شعرونو بشپړ دیوان یې د وخت تاړاکونو له منځه وړی دی، خــو ځینــې شعرونه یې تر موږ پورې رارسېدلې دي چې په هغه کې ۱۳ غزلې او یوه ارزښتناکه قصیده ده.
پادري هیوز په کلید افغاني کې د صدرخان دوه غزلې راوړي او چاپ کړي دي، خو د دریم چاپ په سریزه کې یې لیکلي دي چې د چمن بېنظیر په اصلي نسخه کې د صدرخان نور شعرونه راغلي دي او نوموړی اثر په برټش موزیم کې خوندي دی چې پادري هیوز ترینه دوه غزلې ټاکلي دي.
پروفیسور افضل رضا په خپل کتاب (پښتو غزل) کې د صدرخان غزلې راوړي دي. له دې څخه دوه یې هماغه دي چې په کلید افغاني کې راغلي دي.
حبیب الله رفیع په ادبي ستوري کې د صدر خوشحال یوه قصیده راوړې ده چې د خپل پلار خوشحال په ویرېې ویلې ده.
د عبدالقادر خټک د دیوان په هغه نسخه کې په برټش موزیم کې ده، د نسخې په پای کې د مختلفــو شــاعرانو د شعرونو په لړ کې یې د صدرخوشحال دوه مخمسه راوړي دي. تر اوسه پورې یې ۱۳ غزلې، یــوه قــصیده، دوه مخمسه معلوم شوي دي.
۲ــ دلی او شهی:
دا کتاب د صدرخوشحال منظوم داستاني اثر دی،۱۲ څپه ییزه مثنوي ده، ټول ۱۹ سرلیکونه او ۱۱۷۶ بیتونه لري.
صدرخان دغه اثر په ۱۱۱۰هــ.ق. کال کې نظم کړی دی.
دغه کیسه له صدر خان څخه سربېره نورو شاعرانو هم کښلې ده.
۳ــ ادم خان او درخانۍ:
دغه کیسه په ټوله پښتونخوا کې مشهوره ده، صدرخان هم په پښتو ژبه په خوږه نظم ولیکله، دغه کتاب ۸ څپه ییزه مثنوي ده چې په ۱۱۱۸هــ.ق. کال کې یې نظم کړې ده.چې ۲۶۷۶ بیتونه لري
د صدرخان د وینا له مخې دغه کتاب یې د خپل پلار خوشحال په لارښوونه لیکلی دی.
۴ــ معجزات:
بل اثر یې معجزات دی چې په دې اثر کې یې د حضرت محمدﷺ د معجزو په هکله لیکل شوی مثنوي ده.

۵ـ د شیرعلي جنګنامه:

د صدر خان په اثارو کې یوه هم دشیر علي جنګنامه ده، دغه اثر هم په پښتو مثنوي کې لیکل شـــوې دی، پـــه دې کتاب کې یې د حضرت علي (رض )د جنګونو کیسې راوړي دي. د دې کتاپ یوه نسخه په کوټه کې د فروفیتـــور سیال کاکړ سره ده.

٦ـ خسرو او شرین:

ویل کېږي چې د خسرو او شرین په نامه یې یوه کیسه د نظامي له درې خسرو او شرین څخه په پښتو ژباړلې ده.

۷ـ اخلاقنامه:

دا اثر د خوشحال خان نیمګړی اثر و چې عبدالقادر خان خټک یا صدر خوشحال بشپړ کړی دی.

د صدر خوشحال د مړینې په هکله تر اوسه پورې مستند معلومات لاس کې نشته، خو افضل خان خټک په تـــاریخ مرصع کې هم د مړینې په هکله څه نه دي ویلي. تر ۱۱۲۴هـــ.ق. پورې یې له پلار سره په جګـــړو کـــې برخـــه اخیستې ده. له دې وروسته د هغه یادونه نه ده راغلی.

ماخذونه:

د صدر خوشحال ژوند او اثار، زرین انځور.

کلید افغاني، پادري هیوز.

ادبي ستوري، حبیب الله رفیع.

## اته ویشتم لوست

**(د تدریس وخت: دري درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرح | وخت |
|---|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | د ولسي ادب ډولونه او ځانګړتیاوې | |
| ۲_ د زده کــــــړې پوهنیزې، مهــارتي او ذهنيتي موخې | _ د ولسي ادب ډولونه و پېژني،<br>_ په ارزښت یې خبرې وکړای شي او ویې لیکي،<br>_ بېلګې یې ولیکلای شي،<br>_ له ولسي ادب سره یې مینه پیداشي. | |
| ۳_ د تدریس لارې | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت | |
| ۴_ د تدریس وسیلې | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه، پنسل او قلم | |
| ۵_ د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، عملي کار،<br>د ارزونې وسیلې: د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. | |
| ٦_ د زده کــــړې او تدریس فعالیتونه: | _ د ولسي ادبیاتو کومه بېلګه مو زده ده؟<br>_ په تاسو کې څوک پخواني یا اوسني شاعران پېژني؟<br>_ تاسو ولسي ادبیات پېژنئ؟ | ٦ دقیقې |
| ۷_ د انګیزې رامنځته کول: | لومړنی فعالیت:<br>دسلام اچول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه اودتیرلوست ارزونه | ۴ دقیقې |

| ۱_۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| _ په څو زده کوونکو په خپلو خوښه د متن لوستل. | _ زده کوونکي د متن لوستلو ته ځير کېږي چې د کلمو تلفظ او د جملې ترکيب زده کړي. | ۳۵ دقيقې |
| _ د متن په لوستلو کې د زده کوونکو د غلطيو اصلاح کول. | – زده کوونکي خپلې تيروتنې سموي. | |
| _ هر زده کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنې وکړي. | – زده کوونکي پوښتنې کوي. | |
| _ زده کوونکي په ډلو وېشل چې دويم فعاليت اجراء کړي. | _ زده کوونکي دويم فعاليت اجراء کوي. | |
| _ له زده کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، لکه د نوم او صفت په اړه له مثالونو سره. | _ زده کوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي. | |
| _ که وخت و د زده کوونکو وېشل په ډلو او هرې ډلې ته د فعاليت ټاكل. | _ فعاليتونه اجراء کوي. | |
| **_ د فردي لياقت په پام کې نيولوسره له زده کوونکو د څلورم فعاليت پوښتنې وکړئ.** | – زده کوونکي د څلورم فعاليت پوښتنې ځوابوي | |
| _ د زده کوونکو هڅونه او تشويق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډيز ووايي. | | |
| _ زده کوونکو سره د جملو په بشپړولو او د تمرينونو په حلولو کې لارښوونه او مرسته کول. | – زده کوونکي جملې بشپړوي. | |
| _ په زده کوونکو باندې ۵ او ٦ فعاليتونه اجراء کول. | – زده کوونکي فعاليتونه سرته رسوي. | |
| _ د لوست د لنډيز ويل، د ارزونې پوښتنې او په پاکې کې کورنۍ دنده ورکول. | – زده کوونکي د لوست لنډيز وايي او کورنۍ دنده سرته رسوي. | |

۸ـ د متن پوښتنو ته ځوابونه:
د میندو سندرې:
نارې:
دا هغه اشعار دي چې په ملي افسانو کې راوړل کېږي، عموماً د بیت په ډول وي، د کیسو په منځ کې ویل کېږي، لکه د فتح خان په کیسه کې چې ویل کېږي.
نیمکۍ:
د پښتو یو مرکب شعر دی چې له دوو جزو څخه جوړ شوی دی، یو جز یې څو واره تکرارېږي چې سر ورته وایي او بل هغه جز دی چې په منځ کې ورلوېږي او ټیکۍ ورته وایي.
اول سر ویل کېږي دغه سر دوه مسرې وي، خو دا دواړه په قافیه کې یو ډول وي، خو په سیلاب کې برابرې نــه وي. لومړۍ یې اوږده او بله یې لنډه وي. لومړۍ یې ۱۳ سیلابه او دویمه یې ۷ سیلابه وي.
سورکی پیزوان دې په کنډو ختلی لمر دی ـ چاوې چې مازیگر دی.
**چاربیته**:
د ولسي ادبیاتو خورا مهم ډول دی او ډېر شهرت لري. چاربیته په توندۍ سره ویل کېږي.
د ځینو چاربیتو بندونه څلور مسرۍ وي او د ځینو څلور بیته یعنې اته مسرۍ وي.زیاتره یې بزمي اورزمي وي، پــه چاربیته کې دموضوع ربط حتمي دی.
دمیندوسندرې:
دا هغه سندرې دي چې د میندو له خوا د ماشومانو لپاره به بېلا بېلو حالاتو کې ویل کېږي.
د ماشومانو سندرې:
دا هغه سندرى دي چې د ماشومانو له خوا د لوبو په وخت کې ویل کېږي.
**رباعي**:
هغه شعر دی چې څلور مسرۍ لري دوی لومړۍ یو ډول قافیه لري.درېمه مسرۍ قافیه نه لري او څلورمه یـــې د لومړۍ او دویمې مسرۍ په څېر قافیه لري.
غزل: په لغت کې له ښځو سره خبرو کولو ته وایي او په اصطلاح کې هغه شعر دی چې له ۵ تر ۱۵ یا شلو بیتونه ولري. په غزل کې شاعر په پای کې خپل نوم او تخلص راوړي، خو اوس دا دود کم شوی دی.د غزل په سر کې د سرلیک کېن یا ښي لورته خپل نوم او تخلص راوړي.
**منظوم متلونه**:
دا هغه متلونه دي چې اهنگ په کې موجود وي او قافیه ولري لکه:
ژرنده که د پلار ده هم په وار ده.
**د اتڼ نارې**:
دا هغه نارې یا غږونه دي چې په اتڼ کې ویل کېږي.
د نکلونو نارې:
دا هغه نارې دی چې په نکلونو او ولسي کیسو کې ویل کېږي.

**نثر**:
په لغت کې شیندلو ته وایي او په اصطلاح کې هغه وینا یا لیکنه ده چې وزن او قافیه ونه لري. پــه دوه ډولــه دی. عادي نثر او هنري.
عادي نثر عامې لیکنې او ویناوې دي، لکه: مورړ چې خبرې کوو او هنري نثر هغه دی چې د لیکوالو او ویونکي لــه خوا په کې تصویر سازي، روحیاتو، عاداتو او حالاتو ته په کې اشاره شوې وي. هنري نثر ښکلا ییز اړخ ته ډېــره پاملرنه کوي.
**نظم**:
په لغت کې په امیل کې پیبلو ته وایي او په اصطلاح کې هغه وینا ده چې وزن او قافیه ولري.
**کنایه**:
په لغت کې پټه خبره کول او په اصطلاح کې هغه وینا ده چې د مدعا او مقصد څرګندتیا پکې نه وي.په اصــطلاح کې یوه کلمه د خپلې حقیقي معناپه ځای په مجازي معنا کې راځي.

**اړونه**:
ځیني ورته کیسې وایي، ځیني ورته ټکونه وایي. په دري ژبه کې ورته چستان وایي. زیاتره د مثالونو ترمنځ د ذهني ازموینې په موخه استعمالېږي، لکه:
سور دې سندوخک دی ـــ د سرو غمیو ډک دی.
یا: لښته ده زرلښته ده ـــ نه ماتېږي سخته ده.

**تاریخي نارې**:
دا یو ډول نارې دي چې د پښتنو په ټولنیز ژوند اوسیاسي تاریخ پورې اړه لري. دا نارې تر زیاتې اندازې پــورې د هوتکو د پاچاهۍ په وخت کې د احمدشاه بابا په وخت پورې اړه لري. پخوا به هم وې او په ولسونو کې به خورې وې، خوتر مورړ پورې رارسېدلې نه دي.
دغه نارې په عام ډول دوه مسریزې دي، یوه لنډه او بله یې اوږده ده، خو د دواړو قافیه یوه ده.
**منثور متلونه**:
متل اصلاً د یوه هوښیار او حکیم عاقل ویناوې دي چې په قصدي یا تصادفي ډول یې له خولې راوتلې وي او بیــا د لفظي او معنوي ارزښت په برکت د ولس په ژبه جاري شوې وي او خوندي ساتل شوې دي. د متل خصوصیت دا وي چې همېش کنایي معنا افاده کوي، که خپله معنا افاده کړي بیا هغه متل نه دی، متلونه په دوه ډوله دي. منظوم متلونه او منثور متلونه.
منثور هغه متلونه دي چې د سیلابونو په شمېر او د قافیې په مراعات مقید نه دي، بلکې مسجع نثر ورته ویلای شو. دا هم بیا په دوه ډوله دي.
الف: چې بشپړه جمله وي چې فعل او فاعل لري یا مبتداد او خبر لري، که غر لوی دی ـــ په سر یې لار ده.
ب: چې بشړه جمله نه وي په نحوي لحاظ د کلام یو مهم جز ونه لري، خو د متل د تعریف لاندې راځي، لکه: زه

ستا د ارو ته زما د ارو،خپل عمل د لارې مل.
خو منظوم هغه دي چې تنظیم په کې مراعات شوي وي. د قافیې مراعات پکې شوی وي.
**لنډکۍ**:
د پښتو د ولسي ادب خاص ډول دی، په پکتیا کې رواج لري. د اتڼ په ډګر کې په خاصو غړونو سره له لنـــډیو سره ویل کېږي. له سروکو سره یې توپیر دا دی چې دا یوازې د لنډیو په پای کې ویل کېږي. دواړه مصرې یې ۸ څپې وي.
دواړه مسرې یې په یوه قافیه نه وي.
ته په کنډو واوښتې
راپرې دی ښول غمونه
سرې سترګې راجګې کړه
لوګي شول وطنونه
**لوبې**:
د پښتو نظم یوه خوندوره برخه ده، ساده وي، ولسي مینه تمثیلوي او د کلیوال ادب نمونه وي. له لنډیو څخه رنګ اخلي. سرونه یې اکثره د لنډیو په شان وي. ځینې خلک لوبه او نیمکۍ یو شان بولي، خو اکثره په دې عقیـــده دي چې لوبې خپلواکه برخه ده:
غمونه لري کړه له ما عاجز غمګینه _ راتاو شه لونګینه.
کیسې: دا هم د ولسي سندرو یوه برخه ده:
د نمرود په زمانه کې _ راغلې په کیسه کې
پیدا شو ابراهیم خلیل الله دوست د اکبر و بیشکه پیغمبر و.

**۹ _ اضافي معلومات او ماخذونه**:
په پخوا وختونو کې به ټولو لیکل شوو اثارو ته ادبیات ویل کېدل. د وخت په تېرېدو سره ورو ورو د علومو څانګې سره بېلې شوې. که څه هم ډېرو له یو بل سره ارتباط درلود، خو بیا هم خپلواکې څانګې رامنځته شوې او په هـــره یوه باندې نومونه کېښودل شول او په هره یوه کې د څېړنو لپاره ماهرین او څېړونکي را پیدا او و روزل شـــول. د ادبیاتو یوه بله څانګه رامنځته شوه او ځانګړې تعریفونه ورته وټاکل شول.
هره هغه وینا چې هنري ارزښت ولري د اورېدونکو او لوستونکو احساس او عواطف راوپاروي د ابیاتو پـــه نامـــه یادېږي.
دغه تعریف په نثر او شعر په دواړو کې تطبیق کېږي.
ادبیات په دوه ډوله دي:
لیکني ادبیات او شفاهي ادبیات.
لیکني ادبیات هغه دي چې هغه د قلم په ځوکه لیکلای شوي او چاپ شوې وي او د ورکېدو څخه یې ویره لیـــرې شوې وي چې زموږ د پښتو ادبیاتو په برخه کې دغه لیکنۍ برخه ډېره کمه ده چې دغه کموالی یې ځانګړې علتونـــه

لري:
یو علت خو دا دی چې پښتانه د وختونو په اوږدو کې له ښاري ژوند څخه لېرې او له سواد څخه بې برخې وو، نو زیاتره د کتابونو د لیکلو خوا ته توجه نه ده شوې.
ــ کوم کسان چې په پښتو کې د سواد خاوندان وو هغوی هم د عربي او ښاري درسي ژبې تر اغېز لاندې وو که څه یې لیکلي دي هغه یې هم په دري لیکلي دي.
ــ بل علت یې دا دی چې پښتو لیکني اثار د وختونو په اوږدو کې زموږ لاس ته نه دي راغلي، تر اوسه پورې چې د پښتو ژبې کوم تحریري اثر تر لاسه شوی دی هغه پټه خزانه ده چې په هغې کې د پښتو ژبې لــومړنی شــعر چــې امیر کروړ ویلی دی راغلی دی او هغه د ۱۳۹ هــ.ش. کال د غور په مندیش کې امیر شوی دی. د دغه شعر له قوت څخه معلومېږي چې نوموړی شعر په داسې وخت کې ویل شوی دی چې پښتو شاعري پوخوالي ته رســېدلې وه.
ــ په پښتو کې چې کوم اثار لیکلي شوي دي هغه هم د وختونو په اوږدو کې چې د چاپ زمینه ورته برابره نه وه یا په اوبو کې اچول شوي یا تر خاورو لاندې شوي دي.
ــځیني اثار د انګرېزانو په وختونو کې وړل شوي دي چې د هند په کتابتون او د لندن د برټش په موزیم او د جرمني د تیوبنګن په کتابتونو کې دي، نو له دې امله په پښتو ژبه کې تر شفاهي اثارو لیکني اثار کم دي.

**دویم شفاهي اثار**:
شفاهي یا ولسي ادبیات هغه دي چې په شفاهي ډول د ولسونو ترمنځ خواره واره وي، اول ورته د لیکلو زمینه برابره شوې نه وي، بیا ولسي شفاهي اثار هم په دوو ډولونو وېشل شوي دي.
منظوم ادبیات او منثور ادبیات
منظوم ادبیات په دوو ډولونو وېشل شوي دي، عام ولسي ادبیات او خاص ولسي ادبیات.
په عامو ولسي ادبیاتو کې د شاعراو ویونکي نوم نه وي، خو د ولس هنداره بلل کېږي، لکه:لنډۍ، د اتن نـــارې او نور. په خاصو ادبیاتو کې د شاعر او ویوونکي نوم موجود وي، لکه:د ولسي شاعرانو شعرونه، لکه: رباعي، چاربیته، بګټۍ، لوبه او نور.

پای